# اليکوال عبدالباری جهانی دسباوون په تمه

## جهاني چي زه پېژنم

د کندهار ښار د کابل دروازې د شمالي کلافصيل او باميزو کوڅې په‌تقاطع کي يو کور دی چي د احمدشاهي عصر د مشهور شخصيت اشرف الوزرا شاه وليخان باميزايي د استوګني مېنه وه. په دې کور کي يو خوش سليقه، بې آزاره او پرهېزګاره‌سوداګر اوسېدئ. ښاغلي عبدالباري جهاني، چي نن په فرهنګي حلقو کي د پښتو ژبي د‌نازکخيال شاعر په توګه يوه پېژندل سوې څېره ده، او شعر يې د پښتو ادبي زېرمي پر حجم باندي، د کيفيت او محتوی په لحاظ، ډېره رنګينه اضافه ده، د نوموړي سوداګر )اروابښادحاجي عبدالاحمد( مشر زوی دی، چي زما په حساب پنځوس کاله وړاندي په همدې کور کي‌زېږېدلی دی.

زه او جهاني سره همزولي يو، يو د بل پېژندګلوي مو تقريباً د عمرونو همزولې ده. پر يوه استاد )مرحوم ملا محمدنور اخند( مو ديني زده کړي کړي، او د کندهار د ميرويس په لېسه کي مو تر دوولسم ټولګی پوري يو ځای درس لوستی دی، او په‌يوه کال پوهنتون ته تللي يو. زه چي اوس دا کرښي کاږم، ذهن ته مي د نيمي پېړی ښو خاطراتو هغه ډك ژوند تداعي کيږي چي په رشتيا سره په وياړلو ارزي. پر هيواد باندي د شوروي تاړاك هښمو موږ جسماً سره بېل کړو. زه په هيواد کي پاته سوم او دی يې تر يولړ سرګردانيو وروسته امريکا ته ورساوه وروسته ما ته هم مېنه سره تبی سوه او سرنوشت‌دا دی د څو کلونو راهيسي د کاناډا اوبه راباندي چښلي دي.

عبدالباري جهاني د تعليم په دوران کي شوخ، له درسونو سره بې علاقې خو مستعد شاګرد و. په هماغه وخت کي‌يې له شعر سره مينه وه، شاعرانه ولولې يې درلودلې. د محلي سندرغاړو محفلونو ته‌ورتلئ او د کندهار د مشهورو شاعرانو سلام بابا، ملا منان اخند، مير يحيی، او مولوي بريالي )شهيد( ډېر شعرونه يې په ياد زده وه. حافظه يې دومره پياوړې وه چي محلي‌سندرغاړو به د ده په مخ کي هغه غزلي نه ويلې چي نورو ته به يې زده کېدل نه غوښتل.ځکه چي عبدالباري جهاني به په يوه وار اورېدلو سره حافظې ته سپارله او سبا ته به هماغه منحصر بفرد غزله د عبدالباري جهاني په کتابچه کي درج وه. جهاني په کلاسيکه‌موسيقي کي ښه وارد و، او د موسقي مقامونو په مسابقه کي به، چي په هغه وخت کي د ځوانانو مشغله وه، پاته نه راتلئ. له شوخي طبعي سره د ډېرو نازکو عواطفو څښتن و، او په برنده ځوانۍ کي مي څو ګښته ليدلی دی چي له سترګو څخه يې لپي لپي اوښکي ګرېوانه‌ته تويولې. د طبيعت په ښکلاو کي يې له مازيګرني لمر سره لېونۍ مينه درلوده، او په‌کتلو يې سترګي نه مړېدې. کله چي د کابل په ګذرګاه کي اوسېدئ ما ته يې په څو ليکونو کي د ګذرګاه له غره څخه د غروب د ننداري شاعرانه تصويرونه کندهار ته رالېږلي و )د 1350شاوخوا( او هر ليك يې د يوه عالي تخيل ښکلې انشاء وه. حقيقت دا دی چي د ښاغلي‌جهاني استعداد د پوهنتون په دوره کي ځرګند سو، قريحې يې داسي وده وکړه چي د لومړيو شعرو تر ليکلو او اورولو وروسته يې د پښتو ژبي د مشرانو شاعرانو او استادانو پاملرنه ځانته واړوله. نور نو جهاني د پښتو مشاعرو فعال ګډون کوونکی سو، او شعر يې‌ډېر زيات اورېدونکي وموندل. ده به شعرونه ويل خو غونډول به يې نه. زما او نورو دوستانو د ټينګار نتيجه وه چي جهاني د خپلو شعرو خوندي کولو ته اقدام وکړ. د جهاني شاعرۍ په افغانانو کي هغه وخت لا ډېر اورېدونکي وموندل چي زموږ پر هيوادباندي د سرو لښکرو ناورين راغئ او ده به په خپلو سوزناکو نظمونو کي له يوې خوا د افغانانو مظلوميت او د سرو لښکرو وحشت انځوراوه او له بلي خوا به يې د افغاني شازلمو په غښتلو "سوکانو" د دښمن "ټانکونه ويلي کول". د ده د شعر ازانګه بيا هله څوچنده سوه چي د هيواد مشهور او منلي هنرمند ښاغلي ناشناس پخپله ساحرانه آواز کي د‌نړيوالو غوږونو ته ورساوه. زما ښه په ياد دي چي د کابل راډيو او ټلوېزيون څخه د ښاغلي ناشناس په آواز کي د جهاني دا شعر )په موج خېزه هيبت راغلې د فلك سېلابي کړ.ي= زموږ کښتۍ يې ډوبوله خپل درياب يې توپاني سو( د هوا څپو ته خپرېدئ، خلکو به د ده په شعر کي د خپل ژوند څپڅپانه کښتۍ او د دښمن توپاني درياب کاته. زه د جهاني د شعر پر ځرنګوالي نه ږغېږم. ده د شعر په ټولو اصنافو کي د تخيل زور چلولی دی. آزاد شعريې ويلی دی، غزلي هم، قصيدې او مثنوياني هم. خو که په شعر کي د مشورې ورکولو ګنجايش‌وای، ما به ورته د غزل ويلو مشوره ورکړې وای. د ده غزل په رنګينۍ رنګين او له شوره ډك دی. يو مزيت يې دا دی چي نه يې دومره پرله پېچلی کړی دی چي لکه د ځينو نننيو غزل‌ويونکو شاعرانو دا، چي لوستونکي يې پوهېدلو ته ټپ ودرېږي. نه پوهيږي چي د شاعر مقصدڅه دی؟ او نه يې دومره ساده کړی دی لکه زما غزل چي لوستونکي يې پر شعروالي شکمن سي.جهاني خپل ادبي فعاليت تر ډېري اندازې تخليقي کار ته وقف کړی دی، خو هغه تحقيقي ليکني چي يې خپرې کړي دي، د څېړني په کار کي د ده د نقاد ذوق او ښې سليقې ښکارندوی‌دي.

د جهاني دا دريمه شعري مجموعه ده. لومړی يې "ورکه مينه" نوميږي چې په 1367 ش کال په پېښور کي د ده په شخصي لګښت چاپ سوې ده. دا مجموعه يې له روسي تاړاك څخه د را پيدا سوو غمونو او ويرونو په هيښتاکه بهير کي خپره کړه. په دې بهير کي چې د پياوړي شاعر ښاغلي رفيع صاحب په وينا "هر چا جلا جلا، جلا جلا، جلا وژړل" د چاپوازې په سترګو کي د ژړا سرامني نخښې وليدل سوې، د چا ژړا نورو هم واورېدله او ويې ليدله، خو د جهاني ژړا جهاني سوه. دوهمې مجموعې ته يې د "پايکوب" نوم ورکړی دی چې پښتنو ته نا اشنا غوندي ښکاري. دا مجموعه يې هم په پېښور کي په کال 1372 ش کي د وفا د جريدې په اهتمام او د ده په شخصي لګښت خپره سوه. دريمه مجموعه يې د "د سباوون په‌تمه" نوميږي او زموږ د مظلوم ملت د ژوندانه په يوه داسي غمجن پړاو کي خپرېږي چې د ميليونونو شهيدانو د پاکو وينو پر سر سوداوې رواني دي او د ګران هيواد د اشلې پشلې‌کېدو خطر محسوسيږي. د دې مجموعې له شعرونو څخه څرګنديږي چې شاعر د هيواد له روان‌حالت څخه سخت انديښمن دی او تر دې اندازې چې ځای ځای يې پر شعر باندې قنوطيت غلبه کړې ده.

په دې مجموعه کي يې د پښتو د شفاهي ادب له خزانې څخه څه دپاسه 220 متلونه په رباعي وشمه قالب کي په نظم اړولي دي چې يو څو يې مکرر دي. متلونه د پښتنو په ژوند کي خورا څرګند ځای لري او پښتانه يې د خبرو پر وخت د استدلال له پاره د يوه‌غښتلي بنسټ په توګه کاروي. ځيني پښتو متلونه سيمه ايز استعمال لري، خو زياتره يې په‌ملي سطحه مروج دي. ځيني يې د محيط او لهجوې بدلونو له امله د ثبت بېلابېل روايتونه‌لري. داسي متلونه هم سته چې په ټول بشريت کي عام رواج لري. البته د افادې شکلونه به . په پښتو ديواني ادب کي له®يې جلا جلا وي خو د مفهوم له مخې بالکل يو مطلب څرګندوي روښاني غورځنګ را په هيسته بيا تر ننه پوري د متلو کارول باب دي چې ګومان کيږي لومړني څرکونه يې موږ د ميرزا خان انصاري په ديوان کي موندلای سو. څو مثالونه به يې د کابل له چاپ سوي ديوان )1354 ش( څخه راواخلم:

دا ميرزا پخپل مقدار خبري وايي
په کالي کي چې څه وي ځيني ريږون کا
(چې په ديګ کي وي په چمچه راوزي.)
لکه قدر د جوهرو جوهري زده
يا د زرو اصل پيژني زرګر
(د زرو قدر له زرګر سره وي(، قدر زر زرګر بداند قدر جوهر جوهری
د هر چا تر فهمه خپل وطن کشمير دی
ځان په ځان پخپله بخره دی مشعوف
(هر چا ته خپل وطن کشمير دی.)

نورو شاعرانو هم د ارسال المثل د ادبي صنعت په پيروی کله کله پخپل کلام کي متلونه راوړي‌دي، خو د ښاغلي جهاني د کار نوښت په دې کي دی چې ده د متلو نسبتاً لويه برخه په منظمه توګه په ډېرو ښو افادو کي شعري چوکاټ ته اچولې ده.
له ښاغلي جهاني څخه زما هيله دا ده چې دی دې کار ته دوام ورکړي، او اميد دی چې يو وخت خپل دغه راز شعرونه‌په يوه مستقل اثر کي خپاره کړي. زه ښاغلي جهاني ته د دغې مجموعې مبارکي وايم. پښتني‌دنيا د ده د شعرو د نورو مجموعو لار هم څاري.

محمدمعصوم هوتك
20مې 1998 م ټورنټو، کاناډا

په ديګ برخه کي فاضل استاد پوهاند عبدالشکور رشاد ژوري خګيګوني کوې دي او د سل®متله په اوو ژبو کي په نامه ييګ په خګلورو تګوکو کي يو دروند اثر کشګلی دی. دغه‌متلونه ييګ په پشګتو، فارسي، عربي، روسي، انګريګزي، اردو ژبو کي راووې دي. وکګورئ : د کابل پوهنتون د ژبو او ادبياتو د پوهنحګي د پنحګوسو کلونو پشګتو کتابشګود دپوهيالي محمداسماعيل يون ليکنه / 27/ مخ پيګشګور _ 1376 ش.

## ياغي او مبتکر شاعر

ښاغلی عبدالباري جهاني ځوان پښتون شاعر دی، زما په خيال ابتکار او سلاست د ده د شعر ځانګړتياوې دي. زه چې د ده ترانې وايم يا يې اورم ګمان کوم د ده پر نغمو مستی ناڅي، او د ده ترانو ته شاپېرۍ اتڼ اچوي.
د ښاغلي جهاني د شعرونو بل خصوصيت ما ته دا ښکاري چې له رسومو څخه بغاوت کوي، د جمال جلوی له ده څخه‌ځان او جهان هېروي. په دغه جذبه کي نه دی ځاني دی نه جهاني. د احتساب ببره يې له‌زره وتلې وي، د مغانو پر دوکانو په ډېره زړه ورتيا ګرځي. په خورا بې احتياطۍ د ميخانو ترلې دروازې ور ټکوي. د حسن پر کعبه طوافونه کوي، د مينې د بت پر پښو تندی‌موږي. ځکه نو زه دی ياغي شاعر بولم.
د ښاغلي جهاني د فکر شهباز د نوو معناوو په‌ښکار پسې ډيرې هسکي الوتني کوي، او بې ښکاره نه راستنيږي، ځکه نو زه دی مبتکر شاعر بولم.
که ووايم چې د ښاغلي جهاني دغه استعداد يوازي د ښکلا ستايني ته نه دی وقف‌سوی، زما اميد دا دی چې د ادب پوهان به يې رد نه

**کړي. دا ځوان شاعر زيار باسي د ګران وطن پر شمعه باندي سربښندونکي پتنان د ستی کېدلو له پاره راوبولي. د ده شعر بې‌مبالغې د افغان اولس د ويښتابه له پاره هغه سوي چيغې دي چي ږغ يې په اورېدلو کي د غوږ او په لوستلو کي د سترګو له لاري بڅري پاشي. رنځېدلی او کړېدلی افغان اولس ملي وحدت ته هڅوي، د ده استعارې هغه تارونه او کنايې هغه ستني دي چي زړونه سره ګنډي.اوس چي په ګران افغانستان کي اخترونه عاشورې سوي دي، د دې اسکېرلي اولس د سوځېدلي‌او لولپه هيواد په کربلا کي جهاني د حق پر شهيدانو ساندي وايي او کله د يزيدانو په لټون د ماغزو په غوړو مشالونه لګوي. زه چي د ده د شعر په طور کي ګرزم د تأثير جلوې زما ذهن ته د ليدلو بلني راکوي. زه د ده د طبعي په سينا کي هغه رڼاوي وينم چي ډېرو به د هغو ديدار نه وي په نصيب سوی.**

**په پای کي بايد دا هم ووايم چي په دې مجموعه کي د پښتني متلونو غمي د قطعو په ګوتميو کي داسي کښېنول سوي دي چي د شعر د ناوي ښکلا يې دوه ګرايه کړې ده.**

**زه چي دا کرښي ليکم د ښاغلي جهاني د سباوون په‌تمه کتاب مي مخي ته پروت دی، او د هر بيت لوست مي ستايني ته هڅوي. د ښاغلي جهاني پر قريحه او قلم دي برکت وي.**

**اکاډيمسين پوهاند رشاد**

**15اکتوبر 1998**

# آيينه

زه نور د مستي ځوانۍ چيغه نه يم
چي په قاه قاه مي کنوله د رقيب غوړونه
نور دي کوڅو کي نڅېدلای نه سم
نور مي جنون زولنې نه مستوي
نور مي آواز خوبونه نه تخنوي
او نه مي تږې جل وهلې سينه
ستا د خيالونو په کوثر اوبيږي
اوس که درځم نو ته مي نه پېژنې
اوس په کوڅه کي دي زما پلونه بېګانه ښکاريږي
زه بوډا سوی يمه
زما په آواز کي زګېروي ځاله کړې
نور مي سندري ستا د ناز خوبونه نه ويښوي

لاس مي رباب ته نه ځي
نغمه مي ګوتو کي بې سوره سي
کږه وږه سي
شهباز خوله خوله سي
زما له لاسونو هنر کډه کړي
زما له قلمه ښکلا کوچ کړی دی
چي ستا د ښکلي مخ تصوير جوړوم
تندي کي راسي بې حسابه ګونجي
شونډي بې واکه سي راوځړېږي
اوښکي راتوی سي تصوير وژړېږي
زه د کلو د سودايي په رسم
پر آيينه ټپروم لاسونه

ويرجينيا 2/28/1994

**د توپان شپه**

ما د ساحل له غيږي وخوځوئ
زه په دې توره هولناکه شپه کي
په دې تورتم کي د سپليو او څپو پر اوږو
د دې وحشي سمندر غېږ ته ورځم
چي د درياب ساړه تياره کوګل کي
يوه بېړۍ له انسانانو ډکه
ياغي موجونو او څپو کي ګير ده
زه يې د زړه په غوږو
دلته له ليري څخه
د ماشومانو او بې وسو ترهېدلو ښځو
چيغي نارې او غلبلې اورمه
زه د بې وزلي مور د څنګه سره
يوه ماشومه وينم
لکه ويشتلې وارخطا کوتره
چي سر تر پايه رېږدي
او د برېښنا له پړکه و وېرېږي
د ترهېدلي مور تر شا پټېږي
او توري وريځې، توره شپه او دا بېرحمه آسمان
د بې پناه بېړۍ په جنګ وتلي
آسمان غړومبېږي لکه وږی هيبتناکه زمری
او د ژليو او سيلۍ د زوره
د سمندر له سينې وخوځېږي

لکه د غره په شاني لويي څپې
د بېړۍ والو واوېلا پورته سي
د بې اسرې خلکو غوغا پورته سي
زه به ورځم
هرو مرو به ورځم
او دا د مرګ څپې په سترګو وينم
زه دا بېړۍ چېرته ژغورلای نه سم
هغه ماشومه خلاصولای نه سم
د دې څپو لامبو وهلای نه سم
خو زه ورځم
هرو مرو به ورځم
غوا ړم کيسه د قهرېدلي آسمان
د هيبتناکه خروښېدلي توپان
د څپو غېږ کي د بې وزلي انسان
درته را ورسوم
اې د ساحل او د محل وګړو
له جنتي سکونه مستو لېونو ملګرو
اې له سيليو له توپانه بې خبرو خلکو
دا زما چيغې د رسېږي کنه
د خدای دپاره لږ څه رحم وکړئ
په دې بېړۍ کي مو خپلوان ډوبېږي
رقيبان نه دي قريبان ډوبېږي
او که توپان کرارولای نه سئ

که دا ببړی را خلاصولای نه سئ
نو په قاه ورته خندېږئ خو مه
نو پر ساحل ورته نڅېږئ خو مه

ویرجینیا 12/28/1994

## ایکېرس او ډیډېلس

(د یونان له افسانو څخه)
د تورو سمڅو هسکو څوکو اتل
ایکېرس خدای و د یونان د غرونو
ډیډېلس پلار و د دې لوی پهلوان
او ازمېیلي د پېړۍ جنګونو
ده ته له خپله ځانه ګران ایکېرس
ویل بابا دلته مي زړه تنګیږي
ما ته وزر جوړ که چي والوزمه
نور مي له سمڅو سره نه جوړیږي
غواړم چي زما تر وزرونو لاندي
د لویو غرونو څوکي ولړزیږي
زما له هیبته سمندر خبر سي
زما له طاقته څپې وتورېږي
زوړ پهلوان هغه هوښیار ډیډېلس

د سترګو تور ته وزرونه جوړ کړل
له یوه غره تر بله غره رسېدل
ور کې د موم یې پیوندونه جوړ کړل
ویل یې زما د زړګي سره زویه
چې هوس ونه کې شغلو ته د لمر
په وزرونو کې دې موم کار سوی
چې ځان نیژدې نه کې لمبو ته د لمر
آسمان ته وخوځېد مغرور ایکېرس
ور لاندې پرېوتل سرکښه غرونه
د کوه قاف د شاپېریو ارم
او د دېوانو فولادي ښارونه
لاندې یې ولیدې ناپایه اوبه
د سمندر یاغي وحشي موجونه
د زرکلنو نهنګانو ځالې
د شنه آسمان په شاني شنه سیندونه
پر یو سر یې ګرځېدلې توري وریځې
وریادول یې د ابا نکلونه
لکه ګردونه د خدایانو د جنګ
لکه په تېښته د شیطان پوځونه
د ایکېرس لویو تېرو وزرو
د تورو وریځو لوی لوی غرونه څیرل
لکه ګوربت مخ یې آسمان ته ونیو
د هسك پر لور یې وزرونه وهل

د لمر زرينو پلوشو ته ځير سو
د شنه آسمان لور ته يې سر ونيوی
د پلار خبري ورنه هيري سولې
د لمر شغلو ته يې وزر ونيوی
د لمر له تاوه يې موم ويلي سوله
له دوو څنګو يې وزرونه مات سول
سيند ته را ولوېدی د غرو قهرمان
د نهنګ خوله کي يې بندونه مات سول

امريکا ويرجينيا 12/25/1994

## بې رنګه مستي

زما دوست، محمدابراهيم عطايي، يو وخت له کابله ليك راته ليږلی و، او د تېرو خوږو خاطرو د يادولو تر څنګه يې د نوو ناخوالو يادونه هم کړې وه. څو ورځي وروسته مي يو ليك، د دغه منظوم جواب سره، ور واستاوه.

ولي را استوې تصوير د پرون
رايادوې مي د کلو خبري

دا زما د ورانو هدیرو عکسونه
د سوځېدلو کنډوالو خبري

زما له بې وزلو اوښکو څه جوړوې
زړه کې مي ولې توروې زخمونه
څله راباسې دا بې سوره چیغي
زما د قلم ستوني کې وچ نظمونه

ته که زخمي یې زخمي سوی به یې
ما ته دي څله پرهارونه ژاړي
زه په نظر لکه چي روغ درځمه
چي راته سرې سترګي رودونه ښکاري

زما په رګونو کې ساه وچه سوله
زما د مستۍ پر نغمه زنګ پرېووت
زما د خیالونو نوروز ورژېدی
زما له ژوندیو وینو رنګ پرېووت

زما په لاسونو کې سورونه ژاړي
زما د هنر ګوتو کې زور نسته
زما پر آواز باندي مرګی مېلمه دی
د ژوند په ساندو کې مي اور نسته

که د زړه مراندي مي نغمه نغمه سي
په دې کښو یې اورېدلای نه سم
زه د بېدردو د محفل تومتي
له پرهارونو ژړېدلای نه سم

چا ته یې توی کړم دا پردېسي اوښکي
دلته یې سترګي د لیدلو نسته
چا ته به ووایم رنګین خوبونه
دلته یوسف د اورېدلو نسته

زه د ریا پر بازار ژوند کومه
دلته آهونه په پیسو خرڅېږي
د دې بې پتو سوداګرو حساب
زما د نرخونو سره نه جوړېږي

راسه غني غوندي ځان وغولوو
د سرو لالونو خزانې وستایو
د هسکو غرونو په درو کي چېرته
د خپلو تورو نښانې ووایو

راسه چي کړکي د میوند پورته کړو
یو څو ناسازه افسانې ولیکو
بیرته ویده کو دا ژوندي خیالونه

هېرو قبرو ته ترانې وليکو

په شنو پيالو کي به سره مې وچښو
د حميد قبر ته به بنګ ورکو
ځه چي بې رنګه مستي وتخنوو
راسه د خپلو وينو رنګ ورکو

راځه په سرو سترګو نغمه نغمه سو
کوم لېوني رباب ته شرنګ ورکو
راځه چي اوښکو ته اتڼ وښيو
راځه د مرګ په لاس کي چنګ ورکو

راځه چي ساندي سره ونڅوو
اوښکي په سترګو کي زيندۍ کم درته
څو د زاغانو سيورى وسوځوو
څو ژړي پاڼي دي ژوندۍ کم درته

راسه ناټك وکو د ژونده سره
راسه چي نوي کو دا خپل مخونه
زړونه خالي کو له زړو خبرو
راسه چي وسوځو زاړه يادونه

پر خپل شهباز نوي نغمې وکرو

خاورو ته وسپارو شناخته سورونه
له سره وزېږوو نوي كيسې
له سره وليكو تازه نكلونه

كشكي له ځانه بېګانه سو سره
بيا به نه اوښكي نه به ويني ژاړو
نه به د نن له بد رنګۍ ګيله وي
نه به زړې رنګيني ميني ژاړو

ويرجينيا 1994 /28

## بېګانه په نيمه شپه كي

نه ما ليدلې وې په ژوند كي نه تا زه ليدلى
نه مو په ژوند كي يوه بل ته د زړه حال ويلى
نه مو له شپو څخه خوبونه تښتولي كله
نه مو په ژوند كي نوم د ميني و تر خوله وتلى
بس يوه شپه مو چيرته ستركي سره ولګېدې
له هغې شپې سره د دوو زړونو تقدير تړلى
دوو ښكليو ستركو دي سپړل د ميني پټ رازونه
موسكيو شونډو دي سينو كي پارولي زړونه

دلته مي زړه کي ستا د ميني لمبې ولګېدې
هلته رګونو کي د صبر نيلی وسوځېدی
نه ما ليدلې وې په ژوند کي نه تا زه ليدلی
چي يوه شپه مو يو ناڅاپه سره ورکړل زړونه
د يوه بل زړه کي مو ولګول سره اورونه
په هغه شپه چي په محفل کي نڅېدلو سره
هغه شېبه په زړه کي دواړه پوهېدلو سره
چي نور مو زړونه يوه بل ته سره وسپارله
د ميني اور کي سوځېدلو ګډېدلو سره
نور مو د تل دپاره زړو کي زرغونه سوه مينه
په يوه نظر مو په رګونو کي توده سوه وينه
نه ما ليدلې وې په ژوند کي نه تا زه ليدلی
نه مو په ژوند کي يوه بل ته د زړه حال ويلی
نه مو له شپو ښخه خوبونه تېښتولي کله
نه مو په ژوند کي نوم د ميني و تر خوله وتلی
بس يوه شپه مو چيرته سترګي سره ولګېدې
له هغې شپې سره د دوو زړونو تقدير تړلی

دا سندره د امريکا مشهور سندرغاړي
فرانك سيناټرا ويلې ده

# پرېشان خوبونه

زه چي دا ټوله سړه شپه ستا پر مړوند بیده وم
او ستا په سپینه پسته غېږه کي مي
په اوښتو را اوښتلو خولې ستړي کړلې
ته وا مین و د ازل د ورځي
لکه د میني جل و هلي تږي
د یوه بل په غېږه نه اوبېدو
او چي سهار د لمر زرینو وړانګو
د شپې پر سترګو بانو ورپاوه
او د ګلونو له ګېډیه شبنم کډه وکړه
نه ستا په غېږه کي زه اوښتلم
نه زما له غېږي ستا آواز خوځېدی
د پردېسۍ کټ مي اغزی اغزی سو
خیال مي زخمي زخمي سو
شپه له خوبونو سره والوتله
او بیا د تل په شان یوازي سومه
بیا هغه زه هغه زاړه هغه اغزن خیالونه
هغه اوږده هغه ناکام هغه خیرن چرتونه
هغه ترخه د کاشکي کاشکي ناپایانه لړۍ
هغه د عمر په محبس کي زنداني آهونه

# پسرلی سېرکال وځنډېدی

د اورګاډي د پټلۍ سره ولاړ يم
تېروم د انتظار ترخه وختونه
وايم ګوندي که ټاټوبی مي بدل سي
نو سينه کي به آرام وکړي دردونه
ما دا ټوله سړه شپه کړه دلته روڼه
نښېدل مي راته مخي ته خيالونه
پکښي خيال به راته ستا د بېلتون راغی
تصور به مي ژوندي کړل مړه زخمونه
هر يو ګام مي د مزلونو په ښېر اوږد سي
راته انګولي ساړه ساړه بادونه
د آرام په تمه ووتم له کوره
يو په بل پسي ايږدم رنځور ګامونه
وايم ګوندي که ټاټوبی مي بدل سي
نو سينه کي به آرام وکړي دردونه
تصور کي راته راغلې ګڼي وني
ويلي سوي دي د لوړو څوکو واوري
بوی د اوړي په ورو ورو راوړي سږمو ته
ته لا اوس هم راسره وې پر دې لاري
په غوسه دي راته نه کړلې خبري
د بېلتون له وهمه نه وهم کوکاري

خو دا هسي لېونی غوندي يو خوب دی
تعبيرونه به يې کوم خيالونه واوري

زه پوهېږم د دې لمر کمزوري وړانګي
زرغونه برګونه نه سي غوړولای
وايم کشکي خو يو ځلي پسرلی وای
په خيالونو ژمی نه سي لنډېدلای

لا د ژمي اوږدې توري شپې پخوا دي
د سپرلي مخ کي پراته دي لوی مزلونه
د ګلاب سترګي بې لاري ته څلور دي
سپرلی سږکال په ورو ورو ايږدي ګامونه
کشکي واك د خپل قسمت مي وای په لاس کي
چي مي نوم د بېلتانه وای سوځولی
راسره وای ننداري مي دي کولای
پسرلی مي سږکال نه وای ځنډېدلی

تل خيالونه راته وايي چي سپرلی دی
مرغکيو خپاره کړي دي وزرونه
د ګلاب سترګي يې لاري ته څلور دي
سپرلی سږکال په ورو ورو ايږدي ګامونه

د کنګل ځمکي پر مخ واوري پرتې دي

د ساړه ژمي را الوزي بادونه
په سينه کي د اميد لمبې ساتمه
موسم نه سي رانه وړلای ميدانونه
خو ګومان کوم چي ته راسره نه يې
سپرلی سبرکال په ورو ورو ايږدي ګامونه

## پټه مينه

د غم شپېلۍ به راته نه ږغوي
ما به په خپلو اوښکو نه اوبوې
زما د سينې له قفسچې څخه به
د پټې مينې مشال نه تښتوي

ولي مي بيا د پټو سترګو څخه
يو په يو تښتوې خواږه خوبونه
ولي مي بيا د زړه آرام لوټوې
راته راوړې د چا پردي خيالونه

ما د يوې ځوانۍ اختيار لرلو
د يوې ميني نذرانه مي کړله

ما په تندي کي تصويرونه مات کړل
چي څه بتان وه بېګانه مي کړله

زه که تندي کي خپل تقدير سوځوم
دا پر قولونو پښېماني خو نه ده
زه چي خيرات خيرات نارې وهمه
نو د ځوانيو ارزاني خو نه ده

هغه لمبه چي د ځان ونه ګڼې
چي ما د زړه په تل کي وسوځول
پر هغې شمعي بدګومانه نه سې
چي ستا په لاره کي مي ولګول

چي ته په خپل حسن مغروره نه سې
تا ته مي اوښکي در لېږلي نه دي
د زړه په وينو مي رنګين خطونه
ستا پر کوڅه در استولي نه دي

ما چي ځنځير د اوښکو وتوراوه
دې خپل جنون لره مي زور غوښتی
چي ستا تصوير ته مي په ځير کتله
خپلو بڅرو ته مي اور غوښتی

هغه به زما نظمونه خپل وبولي
چي پر لنډۍ زنه خالونه وهي
چي يې پر جګو سپينو غاړو باندي
ګڼې زلمۍ زلفي ټالونه وهي

هغه به زما په چيغو نه مړېږي
له شوګيريو به مي ميني غواړي
زړه به يې زما له درده نه سړېږي
هغه به زما له سترګو ويني غواړي

خو زه پوهېږم چي به ګور ته يوسم
دا له جانانه سره پټه مينه
دا د بتانو په سجدو تومتي
دا نافرمانه دا سرکښه وينه
ويرجينيا1994/4/5

## پيمان

هغه شپه به مي تر مرګه هېره نه سي
چي په قهر دي ور پوري کړ روان سوې

ورسره وې څو ترخې ترخې خبرې
لکه تل چې مې له مينې ګرېژان سوې
زه او ته دواړه پر خپله خبر ټينګ و
دواړو خپله خپله لاره ونيوله
موږ د مينې د محفل په سپينه شپه کې
لګېدلې شمع ولې توروله
راسه دواړه يو د بل خطا معاف کو
ما خو تا ته ستا خطا در وبخښله
درس د مينې وي د ژوند په سختو شپو کې
په لمبو کې د توپان مستو څپو کې
چې توکل مو وي پر خدای او يو کو زړونه
سره ورکو په اخلاص دواړه لاسونه
چې نړۍ بدلېږي ورځې شپې تېرېږي
چې زموږ زړه غواړي هغه به راپېښېږي
موږ لومړی فکر کاوه چې عشق آسان دی
داسې ښکارې چې ژوند حکم د زمان دی
د زمان په حکم رنګ د داستان جوړ سي
چا ته وصل چا ته اور د هجران جوړ سي
چې توکل مو وي پر خدای او يو کو زړونه
سره ورکو په اخلاص دواړه لاسونه
يو له بله سره زده کو درس د مينې
او د مينې زړه ته ورکو د زړه وينې
همېشه چې يو د بل په زړه کې ګران يو

د لحد خولې ته به یو ځای ور روان یو

## تصویر

سره د ژمي شپه ده زه ستا له یادونو سره
لکه ماشوم په وړانګو لوبي کوم
ستا د تصویر مخي ته ودرېږم
او دا یوه لحظه دي خپله کمه
هلته سینه کي غولېدلی زړګي وخوځېږي
او پردیَ میني ته ټوپونه وهي
تصویر ژوندی سي سترګي و رپوي
پر شونډو بیا ګرځي زاړه قولونه
بیا د سبا د لمر ختو په طمع
شپه تر سهاره شمعي ولګېږي سترګي سوځي
خو یو ناڅاپه د تصویر له سترګو
د ژوند او میني رڼا وتښتي
قولونه مړه سي
زه او تصویر پاته سو
او زړه هم نه وهي زاړه ټوپونه
دواړه لاسونه لېوني لاسونه
بې ارادې د تصویر خوا ته ځغلي

تصویر خیري او ژمنۍ سکروټې
لمبه لمبه کي د کلو خیالونه
لا یې لمبه په سترګو وینمه خاموشه نه ده
لا د تصویر بې نوره سترګي زما پر لور کږې دي
چي په سینه کي مي د زړه په تل کي
ستا له تصویره سره مینه نوی اور بلوي
او په رګونو مي بخري ګډ سي
نور دي تصویر ته هم کتلای نه سم
یوه لحظه دي خپلولای نه سم
یوه لحظه زړه غولولای نه سم
او دا د ژوند سره ملګري لمبې
دا په رګونو کي ژوندي بخري
دا د تیارو دا د رڼا ملګري
ستا د خیالونو له محله سره
په تصویرونو رویباري نه کوي
1992/3/12

## تیاره تصویر

ته چي په نیمه شپه کي غلې غلې
زما د خیالونو تر جنته راځې
او زمولوې تازه تازه ګلونه

د پښو آواز دي نه وي
خو له تصويره دي تيارې را اوري
زما د زړګي دپاره خپله سينه
تنګه سي، توره سي، اغزي اغزي سي
په رېږدېدلو لاسو
موږم بې واکه، ترهېدلي، خوبولي سترګي
ستونی مي ډك سي
وايمه چيغي کړم ګرېوان وشلوم
په خيال کي وينمه تصوير د جانان
چي له سرو شونډو يې څلك څلك راځي کوټلي ويني
زه لېونی خو نه يم
که نه دا څوك يې چي دي نه پېژنم
او ته مي هره شپېه
د تنهايي رنګين رنګين خيالونه
د مرګ او وير په چيغو وتوروې
ويرجينيا 2/28/1994

## تڼاکي پښې

(علي سردار جعفري)
په خوارږه خوب د ونو سيوري ته ويدو ملګرو

اې د زمان د حوادثو مېلمنو ملګرو
چې د وختونو چپاوونو مو هستي لوټلې
له کومه راغلئ چيرته درومئ لېونو ملګرو
دا لوی ميدان دی که صحرا يې د دردونو بولئ
د لمر ځنګل دی که يې تنده د سيندونو بولئ
د سيند په پوري غاړه تيږي دي که رونې چينې
مستي نغمې دي که له درده څوك وهلي غلبلې
يا کوم ساحر دی چې د لمر د پرېوتلو پر وخت
په لار کې ناست دی زړه يې وړی د شفق ننداري
د شپې په لار کې کاروانونه دي د ستورو رهي
د دښت لمن کې د نسيم له سينې پاڅي مستي
هره زره کې يوه شمع نوراني لګيږي
پر هر اغزي يې د خوبونو ګلستان هستيږي
اې لېونی ميني پر هغه لور دي مخ ونيوئ
چېرته چې لمر راخيژي چېرته چې رڼا ډوبيږي
کوم ريګستان کې چې سل ګوني کيسې غرقي سولې
څه د ليلا څه د سلما ډولۍ په وار تېرېږي
ښکاره او پټې په سلګونو قافلې رهي دي
مګر يوازي د جرس نغمه تنها شرنګېږي
همدغه رسم او فرمان دی د قرنو راهيسي
پېړۍ پېړۍ پر دغه لاره سفرونه کيږي
سبا به ګورو چې نه موږ يو او نه زموږ يادونه
او بس د رېګو پر سينه به وي باقي ګامونه

سبا به بيا د ونو سيوري ته وي جمع ياران
د وخت ملګري د زمان کور کي مېلمه عزيزان
بيا به پوښتو چي چېرته درومئ مېلمنو ملګرو
يه د اميد شمعي سوځلو لېونو ملګرو

## د توپان شپه

ما د ساحل له غيړي وخوځوئ
زه په دې توره هولناکه شپه کي
په دې تورتم کي د سېليو او څپو پر اوړو
د دې وحشي سمندر غېړ ته ورځم
چي د درياب ساړه تياره کوګل کي
يوه بېړۍ له انسانانو ډکه
ياغي موجونو او څپو کي ګير ده
زه يې د زړه په غوږو
دلته له ليري څخه
د ماشومانو او بې وسو ترهېدلو ښځو
چيغي نارې او غلبلې اورمه
زه د بې وزلي مور د څنګه سره
يوه ماشومه وينم
لکه ويشتلې وارخطا کوتره

چي سر تر پايه رېږدي
او د برېښنا له پړکه و وېرېږي
د ترهېدلي مور تر شا پټېږي
او توري وريځې، توره شپه او دا بېرحمه آسمان
د بې پناه بېړۍ په جنګ وتلي
آسمان غړومبېږي لکه وږی هيبتناکه زمری
او د ژليو او سيلۍ د زوره
د سمندر له سينې وخوځېږي
لکه د غره په شاني لويې څپې
د بېړۍ والو واوېلا پورته سي
د بې اسرې خلکو غوغا پورته سي
زه به ورځم
هرو مرو به ورځم
او دا د مرګ څپې په سترګو وينم
زه دا بېړۍ چېرته ژغورلای نه سم
هغه ماشومه خلاصولای نه سم
د دې څپو لامبو وهلای نه سم
خو زه ورځم
هرو مرو به ورځم
غوارم کيسه د قهرېدلي آسمان
د هيبتناکه خروښېدلي توپان
د څپو غېږ کې د بې وزلي انسان
درته را ورسوم

اې د ساحل او د محل وګړو
له جنتي سکونه مستو لېونو ملګرو
اې له سيليو له توپانه بې خبرو خلکو
دا زما چيغي د رسېږي کنه
د خدای دپاره لږ څه رحم وکړئ
په دې بېړۍ کي مو خپلوان ډوبېږي
رقيبان نه دي قريبان ډوبېږي
او که توپان کرارولای نه سئ
که دا بېړۍ را خلاصولای نه سئ
نو په قاه قاه ورته خندېږئ خو مه
نو پر ساحل ورته نڅېږئ خو مه

ويرجينيا 12/28/1994

## د تورتمونو ښار

موږ د رڼا له کوره لېي د نور ډکي کړلې
لکه ماشوم پوځونه
د تاريکيو پر لور وخوځېدو
موږ ته پلرونو کيسې کړي وې د تورو تيارو
د کوه قاف د جګو غرونو د ژورو درو
د ځناورو او دېوانو د لښکر د نارو

موږ ته سپین ږیرو نکل کړی و د شپو د سپړو
موږ ته هوښیارو سترګورو خلکو
په سل په زر ځله دا وویله
چي که تیارو ته ځئ ډېوې اخلئ
د نور له کوره لېږې نه ډکیږي
موږ په لمنو موږ په لپو کي رڼا واخیسته
پر اوو، لسو او پر شلو لارو
څوك د مېږي او څوك د باد په قدم
د تور تمونو ښار ته وخوځېدو
او هلته ټولو لاري ورکي کړلې
کوم لاروي یو ځلي چیغه کړله
چي د تیارو شیطان ډېوې وژلې
د نور چینې یې ټولي وچي کړلې
د ستنېدو لاري یې وتړلې
تاسي پر کومه خوځئ
په دې تیارو کي به لا څونه مخ په وړاند ورځئ
زه په تیارو کي اژدها وینمه
د ځناورو انګولا اورمه
زه پېریانان زه ښاماران وینمه
اې د تورتم د کږلېچو ملګرو
دا زما آواز چاته رسیږي کنه
تاسي پر کومه خوځئ
خو سمدستي یوې ناولي زیندی

د لاروي ستوني کي تولي چيغي وچي کړلې
د تور تمونو د ښار
د هري تړي هر پېچومي سره
ړانده وګړي سره ولګېدل
دوست او دښمن پکښي چا نه پېژندل
د جنګ اورونه پکښي وتورېدل
بس يو په بل يې تودول تېغونه
بس يو په بل يې سړوله زړونه
بس يو د بل يې پرې کول سرونه
لاري کوڅې له مړو ډکي سولې
کندي درې له مړو ډکي سولې
څو لېونيو چيغي پورته کړلې
د تور تمونو مسافرو واورئ!
د تور تمونو مسافرو واورئ!
چيغي هغه ګړی خاموشي سولې
او په تور تم کي لا رواني دي د وينو پيالې

ويرجينيا 8/15/1998

## د جانان تصوير

ما ته مي سل ځله رويبار ويلي

چي هغه ستا د شاپېريو ارم
اوس د دېوانو پېريانانو شيطانانو کور دی
اوس يې ډېوې د توري شپې بلاوي نه تښتوي
اوس د رباب او د شهباز له جنګه
اوس د مستانو د پيالو له بنګه
اوس د جامونو او پيالو له ګړنګه
نازکو پښو کي د پايزېب له شرنګه
د شپې له سترګو تياري نه ټولېږي
او هغه ستا د جانان ټولي کوڅې
چي تا يې خاورو ته سجدې ور وړلې
چي هري تيږي ستا له ترږو قدمونو سره
د ازلي پيوند خپلوي درلوده
د غمازانو د پيرو ډکي دي
لاري يې ټولي له اغزو ډکي دي
او هغه ستا د شعر او نظم خالق
ستا د غزل ستا د خوبونو او خيالونو جانان
چي تا يې خپلي بې هنره ګوتي
د تصويرونو په ايستو وچي کړې
چي تا يې پښو کي د ځوانۍ ورځي دانه دانه کړې
ستا په نامه لېونی نه پېژني
ستا له نمو سره خپلوي نه لري
ستا د غزل په ژبه نه پوهېږي
رنګ يې بدل زړه يې بدل مينه پردۍ غوندي ده

او تش یو نوم ستا د جانان پاته دی
ما د رويبار خبري وژړوي
دانه دانه اوښكي راوڅڅوم
د آيينې مخي ته ودرېږم
په هره اوښکه کي تصوير وينمه
د خپل جانان او د جانان د کوڅې
دا اوښکي زما دي دا تصوير مي خپل دی
وصل خوښي بېلتون او وير مي خپل دی
1996/6/9

## د رڼا څاڅكي

د خدای له ښکلو هنرمندو ګوتو
د تيارې غېږ ته رڼا وڅڅېده
د توري شپې پر کرغېړنه لمن
د عرش د ستوري ښکلا وځلېده
نور د شيطان لښکر يې وتوراوه
د فرشتو صفونه وخوځېده
څو ماښامونه د ابليس پر ګوتو
د رسوا شمعي لمبه وسوځېده
د بد رنګيو د دېوانو پر ښار
د شاپيرۍ پلوشه وغوړېده

د غم په خونه کي نغمه نغمه سوه
اوښکه له نیمي لاري وګرځېده
د چا رنځوري شپې یې وپوښتلې
پر هېر

## د زړه ماتو مهمانخانه

له هغې ورځې چي ته رانه جلا سوې
زه دي پرېښودم بېلتون تورو تيارو ته
ما هم ځان ته نوې مېنه پيدا کړې
هلته ليري په ګوښه کي اوسېدو ته
په کوڅه د تنهايي کي يو ګوښه ده
د زړه ماتو په نامه مهمانخانه ده
په کوڅه د تنهايي کي به کړېږم
څو سلګيو د مرګي ته ور رسېږم
هلته زما په شاني ډېر خلك اوسېږي
خو زړه ماتي مينان پکښي ځايېږي
په تيارو د تنهايي کي ژړېداى سي
په لمبو د بېلتانه کي سوځېداى سي
په هغو تپو تيارو کي به اوسېږم
په لمبو د بېلتانه کي به سوځېږم

په کوڅه د تنهايي کي به کړېږم
څو سلګيو د مرګي ته ور رسېږم
بل به نه وي خدمتګار مهمانخانه کي
نو به اوښکي وي کوربه د دغه لوري
هره ښکلې به د غم په ټال زنګېږي
او په غاړه به جامې وي د غم توري
په هغو تپو تيارو کي به اوسېږم
په لمبو د بېلتانه کي به سوځېږم
په کوڅه د تنهايي کي به کړېږم
څو سلګيو د مرګي ته ور رسېږم
چي دي پرېږدي محبوبا په بېلتانه کي
هوسونه د ځوانۍ دي نيمه خوا کي
د ژوندون په کيسو اوښکي کي در ګډي
د ويلو افسانه درته پيدا کي
نو روان سه په کوڅه د تنهايي کي
د زړه ماتو په نامه مهمانخانې ته
په لمبو د تنهايي کي به کړېږې
څو سلګيو د مرګي ته ور رسېږې

دا شعر د امريکا تر ټولو مشهور هنرمند
الويس پريسلې ويلی دی

## د سباوون په تمه

زه د زوی مړي سباوون په تمه
کرار کرار تېروم لاسونه
یو څو شپېبې په انتظار تېري کړم
بیا په ورو ورو پورته کوم ګامونه
مځکه آسمان راته دېوان ښکارېږي
تپه تیاره مي ډاروي خیالونه
له لیري اورم د لېوه انګولا
د مرګي وهم تښتوي خوبونه

تپه تیاره ده هولناکه شپه ده
لاس کړومه څه لیدلای نه سم
د ورکو لارو مسافر لاروی
له وهمه ګام پورته کولای نه سم
بوټي او کاڼي لړمان اغزي دي
یوه شېبه کرارېدلای نه سم
له کلي کوره له وګړو لیري
له ډاره چیغي هم وهلای نه سم

په خیال کي ګورم چي سبا راغلی

د شنه آسمان په غېږ کي لمر ختلی
پاس په هوا ګرځي د زانهو کتار
لاندي د ځمکي مخ ژړ ګل نیولی
د آسماني بلا له وهمه چینجی
د وني ببخ ته خوځي غلی غلی

نور په تیاره کي مي له سترګو سره
د توري شپې شیطانان نه تېرېږي
خیالي ماران په لار کي نه دي پراته
سینه کي زړه له وهمه نه رپېږي
نور د دېوانو ښار کي نه اوسېږم
د چا له سترګو لمبې نه خوځېږي
لیري نیژدې له هري وني سره
د ځناورو سترګي نه ځلېږي
وایم خپلوانو ته مي چیغي کړمه
چي شپه سبا سوه نور دي نه وېرېږي

خو یو ناڅاپه له نیژدې اورمه
د یو ځو غټو ځناورو غړومبی
په تاریکه کي له یو ځایه راځي
د کوم زخمي غوندي وګړي زګېروی
ساړه بادونه راته کرېږي راوړي
د مار چیچلو په شان سوی وی وی

شپه لا تیاره ده نوره هم پاته ده
د دې تیارو لمنه نه ټولېږي
د سباوون امید مي پاته نه دی
که شپه تېرېږي پر ما نه تېرېږي
هغه ده راغله د لېوانو ټولۍ
اوس به مي غوښو باندې وپړسېږي

نور بېهوده نارې وهلای نه سم
په کرږو ستونی ځیرولای نه سم
د مرګي خوله کې د سبا په وعدو
ځان تېر ایستلای غولولای نه سم

## د شینډنډ فتح

زېری راغی د اغیارو لښکر مات سو
پر چمن مي د زاغانو ګذر مات سو
نور یې زما پر ګلزارونو سیوری نسته
د ابلیس د وزرونو شهپر مات سو
په شنه ډنډ کې سوې د زهرو اوبه وچي

د غماز لاس کي لوېدلی کوثر مات سو
خوله دي جار سمه رویباره راته وایه
د رقیب په لړمانه کي خنجر مات سو
د خیالونو پر مزار مي جنډې ناڅي
د غلیم په جنازو مي محشر مات سو
نن به زما له مستی ځان ساتې آسمانه
د جانان پر مخ د بدو نظر مات سو
نور د چا له سترګو نه ډارم فلکه
په لېمو کي یې د قهر نشتر مات سو
ساقي نن مي میخانه په اجاره ده
د واعظ د تودو چیغو اثر مات سو
چي په شپو پسي یې شپې راته کرلې
د زمان د تورتمونو منتر مات سو
اوس نوبت د جهاني د پایکوبۍ دی
د رقیب په نوم لیکلی ساغر مات سو

9 /3 /1995واشنګټن

## د غرب تر آسمان لاندي

(نادر نادرپور)
د خاطراتو له کوڅو څخه مي

ستا د ګامونو آوازونه راځي
آه زما د ليري ولاتونو دوسته
لکه چي زما د پردېسۍ ښار ته دي لار کړې ده
دلته زما زړه کي د سهار مرغکۍ
د دې شرير جهان فضا کي راته
د وزرو د خلاصولو آرزو وپاروي
خو چي د شپې تياره وزر خپروي
بيا دېوالونه زما د پټ زندان خبري کوي
دلته به زما پته له کومه کوې
دې بېګانه نړۍ کي زه يوازي ځان پېژنم
په آيينه کي مي تصوير بندي دی
او زه د خلکو له نظره غلی
خپلي څېرې ته په ځير ځير ګورمه
دلته به ما په آيينه کي وينې
يوه عجيبه آيينه چي د ساعت په رسم
دوې پټې ستني لري
او په چارچوب د سود او زيان کي ګرځي
د دې هينداري ثانيې دقيقې
په خپل بېرحمه سوداګر مغز کي
پيکه کوي زما ځلېدونکی تصوير
په دې وطن کي وخت طلا ده طلا
او هر ګړی يې د اکسير او کېميا بيه لري
خو زما ضمير د شپو او ورځو حساب نه يادوي

دلته غروب د جنون رنګ اخيستی
او د باران څاڅکي يې
د تنهايي اوښکي دي
د ستورو سترګي يې څه نه سي ليدای
زه هم له خپلي کړکۍ ها خوا ته وتلای نه سم
او مخامخ دېوال د بندو سرحدونو په څېر
ماته حرام کړي د دوستانو ديدار
دلته ډېوه د همسايه له کوره
زما سترګي نه ور بولي
دلته په دې وطن کي
بېګانګي تر ټولو ښه ملګرې
ټولي دننه ته خلاصيږي دروازې د خلکو
زما پر پردېسه پر غمجنه ځمکه
دلته د غرب د خړ آسمان د لاندي
شپه زما په زړه کي اوسي
او سهار زما له خپلو ماټو پيل سي
دلته نور زما په شان پردېس او غمګين نه اوسيږي
د شپې تورتم کي د چا لاس کي څراغ نه بليږي
تنها د يوه زړه سرګردانه آواز
د کوم حيران لاروي
د پښو له ږغه سره
د خاطراتو له کوڅو راوزي
آه زما د ليري ولاتونو دوسته

دلته د کوم دروازې په خنګ کي
د کومي وني شاته
د چا د برغ په انتظار ولاړ يې
لکه چي زما د پردېسی ښار ته دي لار کړې ده

ويرجينيا 4/14/1996

## د نغمې قبر

ما به ګرېوان په سړاوه اوښکو مي اور واخيست
لمبو يې زور واخيست
ما هغه اور نه و وژلی چي يې نور واخيست
لمبو يې زور واخيست
روېباره پوه سوم چي مي ښار د هستېدلو نه دی
زما د ليدلو نه دی
د ژوند خيرات مي نور د چا د قبلېدلو نه دی
د اخيستلو نه دی
ما لېونتوب ته په پردی کوڅه کي اور واخيست
لمبو يې زور واخيست
چا ويل اوس هلته ياران پر شمع نه تولېږي
پروانې نه سوځېږي
اوس د ساقي له پيالو رنګ د مستی نه پاڅېږي

ځواني یې نه نخیږي
د تورو شپو اجاره دار له ورځو شور واخیست
لمبو یې زور واخیست
چا ویل نور د مطرب ګوتو کې شهباز نسته
ژبه د ساز نسته
شرنګ د نغمې شور د بلبل د راز و نیاز نسته
د چا آواز نسته
وایي برات له جنازې څخه پېغور واخیست
لمبو یې زور واخیست
نور پر سورکیو شونډو ځواني نغمې نه خوځیږي
رنګونه نه بهیږي
له خزانونو تښتېدلي مرغۍ نه ستنیږي
ګلونه نه غوړیږي
وایي ملیار یې له کوڅې څخه نسکور واخیست
لمبو یې زور واخیست
نور د آدم نغمو ته شپې د درخو نه سپینیږي
نکلونه نه ویښیږي
د چنډنې رباب له شوقه پردې نه څیریږي
افسانې نه جوړیږي
د بزم شمعي له تیارې کفن په پور واخیست
لمبو یې زور واخیست
نور مي د هیلو په کوګل کې شمعي نه بلیږي
خوبونه نه تخنیږي

د خیال وزري د جانان غېګږي ته نه غوړېږي
یادونه نه مسېږي
راته تقدیر کور د توپان پر اوږو سپور واخیست
لمبو یې زور واخیست
نه پر ګودر باندي پېغلوټې نه منګي دي کتار
نه څوك د چا انتظار
نه جهاني ستا د سندرو هلته سته خریدار
نه دي آواز دی په کار
ما ځوانیمرګو ارمانونو لره ګور واخیست
لمبو یې زور واخیست

ویرجینیا 20/5/1996

## د هستۍ مستي

پرېږدئ پرېږدئ زما لاسونه زه اورونه په لړمه
زه په سوي مذهب پوه یم زه دوږخ ځانته کرمه
زه د خضر چینه سوځم نږوم د کوثر غاړي
زه له مړه ژوندونه موړ یم ما ژوندی لحد ور غواړي
زه د مست ګرداب په غېږ کي لا موجونه ویښومه

زه په ستوني د ښامار کي مرګ له خوبه پاڅومه
زه په زړه د جهنم کي انګارونه لټومه
اهريمن را پارومه لا يې ځانته قهرومه
پرېړدئ پرېړدئ زما لاسونه زه اورونه پ

## د ښامار افسانه

وايي پروت په چين ماچين کي يو لوی ښار و
ښار لا څه چي د جنت په شان تيار و
هر سپرلي يې د جنت سره سيالي کړه
هر يو باغ يې د فردوس د سترګو خار و
په هر دښت کي يې رنګونه اورېدلي
له نغمو څخه اودلی هر ابشار و
هره ونه يې د مشکو سوداګره
هر يو بوټي يې نسترن په ګلو بار و
هر ګودر يې په پېغلوټو ښايسته و
د پاوليو پايزېبونو شرنګهار و
هره پېغله يې ښايسته د ګلو ونه
هر زلمی يې ښکلی لوړ لکه چنار و
خدای ورکړي خزانې وې انبارونه
له ياقوتو مالامال يې هر کهسار و

خو آفت و نازل سوی پر دې مېنه
ورته پروت د غرونو شاته یو ښامار و
په نوبت یې له دې ښاره ولجه وړله
یوه پېغله او یو اوښ په خوړو بار و
هره نجل به په نوبت ورته راتلله
دا مرګی د هرې پېغلې په خپل وار و
د چا کور له غمه نه سو خلاصېدلای
که نېستمن و که بډای و که نادار و
لونې تللې د قاضیانو کوټوالانو
نه پاچا او نه وزیر د خپل اختیار و
د پاچا د ښایستې لور نوبت راغی
غم نازل پر کور پر کلي پر بازار و
کجاوه یې تېرول پر بازارونو
په سرو سترګو یې ژړل ښځو مېړونو
په کوڅو کې سوې د نجونو پورته ساندي
له بامو یې غورځول ځانونه لاندې
چا کړل خیرې ګرېوانونه تر لمنو
چا شیندلې ایرې خاورې پر سرونو
له ښامار سره د چا برابر زور و
ټولو خلکو ته منظور شرم پېغور و
د زرګر پر دوکان ناست یو پهلوان و
مسافر له بله ملکه سرګردان و
په خواریو تر دې ښاره و راغلی

شوم نهر په شپو په ورځو ګرځېدلی
پټ یې توره کړه تر ملا و ووت له ښاره
اوښ د مخه ده وهل ورپسې لاره
مخ یې ونیوی د ښار دباندې غرو ته
د ښامار د هستوګنې و درو ته
لمر نیهام سو مخ د غره او درو تور سو
د رڼا پر مخ پلو د تیارې خپور سو
راښکاره د غره له سره اژدها سو
د پاچا د لور زړګی په واویلا سو
مخامخ روان پر لور د کجاوې سو
اوښ او بار لره په وازه خوله نیژدې سو
دوې یې سترګې ځلېدې لکه اورونه
تر سږمو یې را ایستله سپین دودونه
په مستیو په نارو په غرغړو سو
په نخرو سو د هوس په غړومبېدو سو
پهلوان توره په پښو کې کړله بنده
اژدها ته یې له لیرې کړه څرګنده
اژدها تر پهلوان کړه زامه لاندې
هغه توره د خولې کونج ته کړه ور وړاندې
چې ښامار به تېراوه د نس پر لورې
تر کوګل یې وتل توره پورې وورې
د ښامار پورته رمباړې غلبلې سوې
په تېره توره یې پرې د نس پردې سوې

پهلوان یوه څرمن ورنه جلا کړه
مخ پر ښار سو د پاچا لور ته یې شا کړه
ښامار مړ سو ښار آزاد سو له غمونو
نور له چا سره غم نه و د سرونو
ږغ سو پورته د سورنا او د ډولونو
غیږي ورکړلې پلرونو او زامنو
زېری ولاړی تر ښارونو او ملکونو
مرګ سو کډه له کږدۍ له ګودرونو
سره غورځکه سوله پورته د جشنونو
نور به نه وي جنازې د ښکلیو نجونو
زغري واغوستې زامنو د غټانو
توري واخیستې بچو د وزیرانو
سرې په وینو سوې نېزې د افسرانو
مست اسونه ځغلېدل د سردارانو
سترګي سرې سوې د زامنو د قاضیانو
غرو ته وختل بچي د کوتوالانو
پر وژلي ښامار پیل سول ګوزارونه
چا په سرې کړلې نېزې چا خنجرونه
هر یوه یې پرې کوله اندامونه
چا یې سر چا یې لکۍ چا یې غاښونه
هر یوه یې د ښامار د جنګ کیسې کړې
هر یوه یې له مستیه غرغړې کړې
چا خبرې د ښامار د ننداري کړې

چا کیسې د هیبتناکي توري شپې کړې
چا به لاپې د کرۍ شپې د جګړې کړې
چې به بل کیسه کول دوی یې پېښې کړې
په یو کونج کې بیده سوی پهلوان و
د ښامار له جنګه ستړی و ستومان و
ږغ راویښ کړ د ډولونو اتڼونو
د خوښیو د جشنونو د رقصونو
مځکه رېږدي له هیبته د فوجونو
پر آسمان ګرځي کوتري په سېلونو
د هر چا پر ژبه بس یوه کیسه ده
د ښامار د مرګ خبره ده خپره ده
چا ویل ښامار وژلی دی ځوانانو
د دې ښار پهلوانانو توریالیانو
چا خبري کړې د فوج د باتورانو
چا زامن ستایل د خپلو وزیرانو
پهلوان په زوره ږغ کړله ښاریانو
خوشي ولي منت وړئ د مفت خورانو
ما وژلی دی پاچا د ښامارانو
ما بېغمه کړاست د ژوند له غلیمانو
ما راوړې دا څرمن ده له ښاماره
نښانې یې ده د قتل معلومداره
زه ورځم ستاسي پاچا ته تر درباره
ما ته وښیاست کوڅه لیکه او لاره

پهلوان چې د ښامار کيسه کوله
چا په پټه چا په وازه خوله خندله
يو له بله يې پوښتل چې دا د چا دی
دلته نوی پيدا سوی که پخوا دی
له کوم ښار څخه راغلی دا سړی دی
باوله دی سودايي دی لېونی دی
اورېدلې يې له چا څخه کيسه ده
جوړه کړې يې له ځانه افسانه ده
کله کله کړي کيسې د ښامارانو
زوروري بولي مټي تر ايړانو
وايي مات مي کړل پوځونه د دېوانو
راته هيڅ نه دي لښکري د لېوانو
پهلوان يې د ښاريانو خندنی کړ
په خندا او په نارو يې لېونی کړ
ښار په ښار به ګرځېدی کلي په کلي
چا پر سر باندي ويشتلی چا پر ولي
چې به ده کيسه آغازه د ښامار کړه
پر خپل ځان يې سپره د خندا لار کړه
انعام واخيستی زامنو د غټانو
پاچا غټ کړله بچي د وزيرانو
منصبونه يې کړه لوړ د افسرانو
د قاضيانو کوتوالانو د بچيانو
پهلوان کلي په کلي سرګردان و

كله ځان سره په جنګ كله حيران و

ويرجينيا 2/16/1999

## د ښځي ياغي چيغه

زه يوه ښځه يم ياغي آواز مي اورې كنه
نور مي پر شمبر او پر قدرت منكرېدلاى نه سې
زه پوهېدلې يم چي ستا په شاني زور لرمه
نور مي آواز نور مي فرياد خاموشولاى نه سې
ما د دردونو په مكتب كي درس د عقل واخيست
هسي وړيا مي خپلي ويني ازمېيلي نه دي
اوس دونه واك لرم چي څه غواړم كولاى يې سم
هسي بې ګټي تاوانونه مي ګالللي نه دي
زه يوه ښځه يم قوي د ماتېدلو نه يم
ما كږولاى سې خو ملا مي ماتولاى نه سې
زه لكه اوسپنه سوټك مي وار په وار سختوي
په زور او جبر مي له لاري اړولاى نه سې
زما اراده په انكارونو كي لا هم پخه ده
ماشومه نه يم په جار جار مي غولولاى نه سې

تا مي په سر کي عقيده او اراده پخه کړه
زه يوه ښځه يمه ستا په شاني زور لرمه
او چي پر مځکه مي د ميني وزر وغوړوم
چي چيري مينه ده په هغه زړه کي کور لرمه
مګر لا پاته دي پيچومي واښنونه راته
مګر لا ګوري سختي تړي رباتونه راته

تر څو چي يوه کمه خپل ورور ما هېرولای نه سي
زه يوه ښځه يم پر ما منکرېدلای نه سي

دا عبارت په نيويارك کي د آزادۍ
د مجسمې د پښو سره ليکل سوی دی
ستاسي ستړي او بې وزلي ماته راکړئ
هغه تږي د آزادي سا ايستلو
هغه ټول وګړي ما ته را روان کړئ
چي يې نه پرېږدئ پر خپلو سواحلو
زه بې کوره زه توربختي درنه غواړم
دلته کور دی د توپان او سېل ځپلو
زما د ميني ډکه غېږه ده ټاټوبی
د بېکسو، د رنځورو، د وير ځلو

# دارالمجانین

ما یو نکل اورېدلی دی یارانو
په مجلس کې د سپین ږیرو هوښیارانو
چې یو وخت یوه وطن کې فالبینانو
جادوګرو د عمرونو کوډګرانو
د وطن خلکو ته و ویل خبر سئ
زموږ وینا ته ټول غوږونه سرا سر سئ
هسې نه چې بیا سبا به پښېماني وي
د مرګونو او د ساندو ارزاني وي
چپاوونه د غلیم ناګهاني وي
شنه کښتونه سره تبۍ وي ویراني وي
د قسمت سترګې نن زموږ پر لوري سرې دي
د آسمان په زړه کې بیا ویښې فتنې دي
ژر به وسې پر دې مځکه بارانونه
لوږو څوکو نه به راسې سېلاوونه
د آفت اوبه به ونیسي ښارونه
که څاهان دي که ویالې دي که سیندونه
چې هر څوك د دې اوبو نه سېرابیږي
په هغه ورځ به یې هوښ ورنه کوچیږي
نه په دوست نه په دښمن به څوك پوهیږي

نه ترخه نه به خواږه پر چا بپلیږي
د ورور مړي ته به وېړه خوله خندیږي
د عمرونو لېوني به په شرمیږي
د هغو ورځو امان غواړئ د خدایه
موږ خبر کړاست نور نو ستاسي خپله رایه
چا خندل ځوك يې خبرو ته حیران سول
فالبینان د ښاره ووتل روان سول
ژر آګاه کړ وزیرانو او قاضیانو
له دې رازه خپل پاچا د پاچاهانو
پاچا وکیندل په قصر کي حوضونه
د لاجوردو يې ور جوړ کړله فرشونه
ذخیرې يې د اوبو کړلې تیاري
ورته نه وې د باران د څاڅکو لاري
ویل پرېږدئ که باران د پاسه راسي
او کیسې د فالبینانو هم ریشتیا سي
په امان به وزیران پوځ او پاچا سي
لېوني به دا نور خلك شا و خوا سي
یوه ورځ پر آسمان راغلې توري لړي
وړانګي پټي سوې د لمر زریني ژړي
تور پلو پر سپینه ورځ باندي راخپور سو
د تیارو په غیږ کي ډوب کلی او کور سو
له آسمانه اورېدله بارانونه
په شېلو کي سول روان یاغي سېلونه

د آفت له اوبو ډك سول ټول كونجونه
كه ځاهان وه كه ويالې وې كه رودونه
په سبا چي لمر راپورته پر آسمان سو
بيرته ځيري د تاريكي شپې ګرېوان سو
بيا نسيم كړلې خپرې پستې وزري
بيا بورا سينې ته سيخ كړلې نيشتري
بيا آسمان كړلې را توى زريني وړانګي
د بلبل نغمو ته مستي سوې ګلځانګي
بيا سبا د پرون وكيندل قبرونه
بيا د ژوند سره ملګري سول ګامونه
نابېره سوه غوغا د انسانانو
كلى كور او ښار سو ډك د لېونيانو
څوك سپاره دي يو د بل پر اوږو باندي
څوك په سرو وينو كي لژند دي نور خاندي
څوك د وېري دي پراته تر خاورو لاندي
څوك غوريږي څوك ناحقه وايي ساندي
څوك پيشو غوندي ميو ميو كوي روان دي
څوك لړزيږي خيال كوي چي موږكان دي
د چا لاس كي دي چړې د چا تبرونه
بې پروا ځيري د يو او بل نسونه
خبر راغى تر پاچا تر وزيرانو
چي په ښار كي قصابي ده د ښاريانو
له وحشته زړونه رپي د سپاهيانو

امر نه مني هيڅوك د سركاريانو
كه پاچا كه وزيران وه كه قاضيان وه
كه په پوځ كي يې څه لوی منصبداران وه
د تحقيق دپاره ووتل و ښار ته
ټول ايستلي توري ورغلل بازار ته
لېونيو ته يې وكړلې خبري
ښې پستې خوږې خوږې لكه شكري
ويل ګورئ لېونو زه شهريار يم
هم پاچا د دې وطن يم هم مو پلار يم
ولي يو د بل ځيرئ سره نسونه
ولي يو په بل مو سره كړله لاسونه
نړۍ وال او ګاونډيان راته حيران دي
وايي دلته ځناور كه انسانان دي
لېونو سرونه غورځول ګفتار ته
په قاه قاه به خندېدل خپل شهريار ته
چا به ستركي چا به خولې ورته كږې كړې
چي پاچا خبري كړې دوی يې پېښې كړې
يو او بل ته يې ويل چي لېونی دی
يا هغه شهريار نه دی دا پردی دی
پاچا پوه سو چي بل هيڅ تدبير نه كيږي
لېونو ته لېونی پاچا ښاييږي
شهريار شهزاده ګانو وزيرانو
د لښكر سپه سالار او افسرانو

هم قاضي هم يې کوتوال هم اردليانو
د حرم ښايستو مېرمنو غلامانو
د رعيتو د ځاهانو اوبه نوش کړي
سمدستي يې د هوښ لاري فراموش کړي
دوی هم لوخ لېږ راووتل کوڅو ته
خندېدل به د يوه او د بل کړو ته
قتلول به يې په تورو خپل وګړي
د چا غاړي يې زيندۍ کړلې په پړي
څوك يې واچول ژوندي ژوندي لمبو ته
مستېدله غورېدله غرغړو ته
له کورونو تر آسمان پورته لمبې سوې
د ماشومو او د ميندو غلبلې سوې
ګاونډي کړل چا خبر د دې کيسو نه
د دوی خوا کي د بېهوښو لېونو نه
چي مو څنګ ته د سړو خالي دېرې دي
ښار او کلي ټوله لوټ تشي مېرې دي
که پاچا دی که رعيت دي لېونيان دي
يو د بل وينو ته تږي دي لېوان دي
پاچا مشر دی د پوځ د جلادانو
غوښي خوري د خپل وطن د انسانانو
بې مليارہ شنه پټي دي کروندې دي
بې صاحبه نګهبانه خزانې دي
په هر کونج کي د طلاوو خرمنونه

سره یاقوت دي جواهر دي درمندونه
ګاونډیو ژر راټولي کړي لښکري
چا را واخیستي نېزې چا توري زغري
پر وطن د لېونو یې ناتار جوړ کړ
د هستۍ د خزانو یې لوټمار جوړ کړ
دروازې یې د قلا کړې دړي وړي
پر کورونو سوې خپرې د مرګي لړي
چورول یې واړه کلي لوی ښارونه
سوځول یې درمندونه شنه باغونه
قتل عام یې کړ وطن د لېونیانو
ترې رواني یې کړې ډلي د مینځیانو
غرغړه یې کړل پاچا وزیران واړه
د قاضي ککرۍ ورغړېده ولاړه

## دوه ماران

هوښیارانو دي راوړي دا نکلونه
پرې اوښتي دي وختونه او قرنونه
اوسېدله دوه ماران یوه ځنګله کي
خدای ورکړي عجایب وه صورتونه

د یوه یې سل لکۍ وې یو یې سر و
د ها بل یوه لکۍ وه سل سرونه
د یو سري مار خوراك یوه مږۍ وه
له ښکارونو به یې اخیستل خوندونه
یو یې خوب یو یې خوراك یو یې آرام و
په نصیب یې وې ښادۍ او نعمتونه
سږې شپې یې تېرولې په خپل غار کې
تر غوږ لمر لاندي یې تل کول مزلونه
ځناور یې له لکیو بېرېدله
له هیبته به یې تښتېدل پوځونه
د سل سر اژدها په کور کې غم و
خدای ورکړې وه سل سره سل خیالونه
څوك به ویښ څوك به بیده څوك نا آرام و
چا په نیمه شپه کې غوښتله ښکارونه
چې به ښکار د کوم یو سر خولې ته نیژدې سو
نورو ټولو به وهل ورته ټوپونه
کله کله به ښکار پاته تر مابین سو
دوی به یو پر بل کوله ګوزارونه
په یو تن کې سل سرونه سل غلیمه
یو په بل یې ښخول تېره غاښونه
نه سل سری اژدها په ګېډه موړ سو
نه یې ورك سول په سرونو کې زخمونه
نه یې ولیده کراره ورځ په ژوند کې

نه يې وکړل د آرامي شپې خوبونه
يوه ورځ د لوی ځنګله په يوه کونج کې
راښګکاره سوې سرې لمبې ياغي اورونه
وچ لانده بوټي يې ټوله سوځوله
له لمبو يې تر آسمانه تلل دودونه
هري خوا ته يې سکروټې غورځولې
ور پسې وه د خزان وحشي بادونه
ځناورو هري خوا ته کړلې منډې
خلاصول يې خپل ځانونه اولادونه
سل لکۍ په ځان پسې کړلې يو سرې
په يوه تاخته يې پی کړله مزلونه
د سل سرې اژدها پر کور ناورين سو
هر يو سر يې هره خوا وهل زورونه
نه يوه له بله ځان سو خلاصولای
نه يوې خوا ته رهې سول ټول سرونه
په ځنګله کې سو دا يو سل سری پاته
تور نصيب يې کړل په برخه دوږخونه

1994/2/3ويرجينيا

## راز و نياز

زه چي د شپې ستا د ليدو په تمه
د خوب او خيال تورونه وغوړوم
زه چي سوالګري سجدې ولمبوم
نو د سوالونو ځنځير وشرنګوم

جانانه زه د وصل تږى نه يم
زه درنه سترګي د ليدلو غواړم
زه مي سوالونو ته جواب لټوم
زه درنه غوږ د اورېدلو غواړم

که د نسيم په قدم نه يې روان
دا د ګلونو کاروان څوك خوځوي
دا د غوټيو ګرېوان څوك څيروي
دا د رنګونو باران څوك اوروي

که ته په تندر په توپان کي نه يې
که ته په کور د شنه آسمان کي نه يې
که د شبنم پر اوږو نه الوزې
که ته په څاڅکو د باران کي نه يې

نو دا د قهر زلزلې د چا دي
دا د رنګونو قافلې د چا دي

دا بېحسابه آیینې د چا دي
دې آیینو کې ننداري د چا دي

که د شېریني په تصویر کې نه یې
چا د فرهاد کلنګ ته زور ورکړی
که د مجنون افسانې نه جوړوې
چا د دښتونو پر مخ شور کړلی

که دي منصور ته څه ویلي نه وه
څنګه یې ستا په مخ کې ځان ولیدی
ځکه یې چیغه د حق پورته کړله
چي آیینه کي یې یزدان ولیدی

که ته په خپله په صنم کې نه یې
د کاڼو پښو ته سجدې څوک ور ولي
که ستا له ګوتو ښکلا نه را اوري
دا هنګامه د میني څوک پاروي

ستا کرشمه ده له شهبازه سره
چي پر سیتار باندي لمبې بلوي
چي په رګونو کي سکروټي اوډي
چي ترانې یې لېونتوب پاروي

ستا کرشمې په سور کي سوز راولي
دا ستا آواز دی چي نغمه نغمه سي
د تاك په وينه کي ستا مينه گرځي
دا ستا مستي ده چي نشه نشه سي

نه د شېريني نه ليلا حسن دی
دا ستا ښکلا ده چي جلوه جلوه سي
جنون له تا دی زولنې له تا دي
ستا هنگامې دي چي پلمه پلمه سي

د تورو شپو تنگو حجرو امامان
ستا د قدرت ننداره څه پېژني
د تش کتاب د تورو کربښو مين
ستا د جمال پلوشه څه پېژني

دا په زړه تور ړانده کاڼه وگړي
ستا د ليدلو اورېدلو نه دي
ستا د محفل شمعي ته نه دي پيدا
ستا په لمبه د سوځېدلو نه دي

څوك دي په جوگ څوك دي په ذکر غواړي
څوك دي په اور څوك دي اوبو کي گوري
جانانه ما ته هغه سترگي راکه

چي تا په ټولو آيينو کي ګوري

ويرجينيا 1/25/1998

## ريښتونې مينه

چي د سيالي ځای دي نه وي او باران وي
شا و خوا خلك دي ټوله غليمان وي
زما غېږ به تا ته هغه ورځ خلاصيږي
تا ته زما سپېڅلې مينه ښودل کيږي
چي ماښام ستوري ښکاره پر شنه آسمان سي
او څوك نه وي چي د شپې دي نګهبان سي
نه دي څوك وي د سرو اوښکو پاکولو
نه د چيغو د سلګيو اورېدلو
زما غېږ به تا ته هغه ورځ خلاصيږي
تا ته زما سپېڅلې مينه ښودل کيږي
تا د ميني فيصله لا کړې نه ده
خو زما سره پاخه دي پېمانونه
زما په زړه کي به هيڅ شك را پيدا نه سي
وابه نه ورم د ناکسو سوګندونه
زه به وړی او بربنډ دلته هستيږم

پر تتیٔ به پر اغزیو لارو ښکېږم
خو سینه کي به پالم درسره مینه
په دې مینه به ژوندیٔ ساتمه وینه
زما دپاره زما د میني د ښودلو
داسي څه نسته چي نه وي د کولو
چي را الوزي وحشي او توند بادونه
ما به تا ته وي پرانیستي وزرونه
زما یقین دی چي سم تا خوشالولای
ستا د زړه ټول ارمانونه سمه کښلای
زما دپاره زما د میني د ښودلو
داسي څه نسته چي نه وي د کولو
ستا دپاره مي پر سترګو دي منلي
دا نړیٔ به پی کوم په ځغلېدلو
زما دپاره زما د میني د ښودلو
داسي څه نسته چي نه وي د کولو

## زما لار

نیژدې سوی یم د ژوند وروستیٔ شېبې ته
مخامخ یم د ژوندون وروستیٔ پردې ته

واوره دوسته زه يې سپينه درته وايم
چي په څه لرم باور هغه به ستايم
ژوند مي ډك له خاطرو او له نكلونو
ټولي لاري مي كړې پی په سفرونو
هر سفر مي دی په خپله خوښه كړی
هر منزل مي دی شاهد د تكلونو
خو افسوس چي له دې دومره اوږدې لاري
له دې دومره پورته كښته كږلېچونو
د ويلو كيسه نه لرم دوستانو
خاطره د لاري نه لرم يارانو
چي بايد وه پر هغه لار مي پښې تللي
په انصاف مي عملونه دي تللي
پر عمل مي پرده نه ده غوړولې
ښه د ښو بد مي د بد په نوم بللي
هر قدم مي په احتياط په حساب ايښی
ټولي لاري مي پخپله ازمېيلي
ژوند مي ډك له خاطرو او له نكلونو
ټولي لاري مي كړ

**زنداني بلبل**

دې پراخ جهان کې تا ته نصيب سول
په پنجره کې بند وزرونه
دلته به پايې دلته به اوسې
دلته به تېر کړې اوږده کلونه
په دې قفس کې تا ته ليکلي
د ژوندون ورځې باقي عمرونه

ته هم پوهېږې چې ستا وزري
خدای پيدا کړي و الوتو ته
پورته آسمان دی لويه فضا ده
ته جګېدای سې هسکو درو ته
خالق درکړي پاپی نازکي
پر سرو غوټيو و کښېنستو ته

ته هم پوهېږې چې ستا آواز کې
سورونه خوځې نغمې غوړېږي
پکښې سيتار دی پکښې رباب دی
رنګ د سازونو پکښې بهېږي
ستا له کوګله ترانې پاڅي
ستا له خولګيه سندري زېږي
ستا په منګولو غوټۍ نازېږي
ستا له مشوکي شبنم اوبېږي

دومره مي پوه که چي دا څه سوز دی
ستا په نغمه کي ستا په آواز کي
زړه په کوګل کي راسره ژاړي
ورك سم له ځانه دا ستا په ساز کي
دا څه اسرار دی دا څه جادو دی
لږ مي شريك کړه د زړه په راز کي

دا چي ته هر ځل نغمه نغمه سې
دا دي مستي ده که دي فرياد دی
دا له زندانه په وينو ژاړې
که ترانې دي که دي زړه ښاد دی
همدا نصيب دی ته په رضا يې
که دا ستم دی ژوند دي برباد دی

ته زنداني يې زه مسافر يم
دواړه له خپله سېله جلا يو
دواړه بې اوره بې لوګي سوځو
درد او ماتم ته دواړه تنها يو

زما پردېسيو ژبه ګونګۍ کړه
زما په آواز کي ورکي نارې دي
ستا په نغمه کي زګېروی اسير دی

ستا فریادونه زموږ ترانې دي

راځه چي دواړه هسك ته روان سو
ګرېوان کو څیري د قسمتونو
راځه ازل کو د دوږخ زنځی
لار کو بدله د قلمونو

راځه خطونه د تندي وران کړو
نصیب پخپله خوښه روان کړو
ویرجینیا 4/16/1996

## سپین وېښته

کله مي زړه ته سي راتیري پخوانۍ خبري
سترګو ته راسي د ځوانۍ خبري
د ژوند په تورو، په تیارو کونجو کي
د امیدونو شمعي ولګیږي
د زمانې له اغزو ډکي کوڅې
ګلونه وسپړي لاله لاله سي
د پسرلي د نسیم
له جنتي، له زرغونو، له ښایستو ګوتو نه

دانه دانه زلمۍ نغمې تویېږي
او د بڼو پر څوکو
راته وربښمین زرین خیالونه ناڅي
وایم وزر وکمه والوزمه
وایمه ګور د خیام ولړزوم
له هره رګه نشې وپاڅوم
وایم سیتار سم له هر تاره سره
د ترانو سېلونه وځغلوم
چي یو ناڅاپه د خیالونو لړۍ
لکه پرېشان خوبونه وتورېږي
د آیینې مخي ته ودرېږم
پر خپلو سپینو وېښتو لاس تېروم
ژبه کي زور د ګړېدلو نه وي
پښو کي مي واك د نڅېدلو نه وي
سینه کي اور د مستېدلو نه وي
له دوو لېمو اوښكي راوڅڅېږي
او د خیالونو ځولۍ ورغړوي

واشنګټن ډي سي 6/4/1995

**شپېلۍ**

زه چي زلمی ومه کلونه مخکي
ما د دې غرونو په لمنو کي شپېلۍ ږغول
يو څه ځواني وه، څه مستي وه، څه موسم د ګلو
څه شنهار د مرغلينو اوبو
او د چنچڼو شورماشور کي به د زرکو آواز
د هسکو غرونو درې ډکي کړلې
د پسرلي وريځو به
د نسترن څڼو کي
ګېډۍ ګېډۍ ګلونه وشيندله
ما به شپېلۍ ږغول
او هري تيږي، هر ګل بوټي، هري زرکي به مي
نغمه راغبرګه کړله
وينو به اور واخيست ګامونو ته به زور ورغی
او د شپېلۍ آواز به غونډي درې وڅپړلې
کلونه واوښتل عمرونه تېر سول
او يوه ورځ د بېګانه و په حجره کي چېرته
يوه زاړه يو تك تور يوه غريب ربابي
زما د اشنا غرونو کيسې کولې
يوه بوډا په ساندو ساندو ژړل
يو ځو زلميو ورته هېښ کتله
له ربابي سره شهباز ژړله
او زما د غرونو غم لړلې کيسه نه ختمېده

هغه کيسې د تباهيو سوځېدلو کړلې
هغه کيسې د چنچڼيو د وژلو کړلې
هغه سندري د باروتو او لمبو ويلې
هغه ژړل هغه سلګۍ وهلې
او پر تور مخ يې له بې واکو له بې نوره سترګو
لړۍ د اوښکو ګرېوانه ته تلله
هغه ژړل هغه سلګۍ وهلې
او کيسه نه ختمېده
هغه ويل د هغه غره لمن کې
نه چنچڼۍ سته نه د زرکو آواز، د چا شپېليو کې نغمې ويښوي
که نسيم الوزي ايرې اوروي
پر سوځېدلو ونو
او د قبرونو پر کږو جنډيو
په نس ماړه او پړسېدلي کارغان
د چنچڼيو او د زرکو پر ځای
د هر آواز سره واخ واخ پورته کړي

واشنګټن1995/14/12

## شيش محل

څومره خوږې وې برايي د نيمي شپې خبري

چې د خيالونو مو ماڼۍ او بنګلې جوړې کړې
د خوب او خيال د جنتونو شيش محل ته تللو
تا هر څه زما دپاره غوښتل پکښې
ما هر څه ستا دپاره وغوښتله
زه ستا دپاره شهنشاه د جهان
ته زما دپاره ملکه د حسن
او زما د خوښې په ښايستو ارغواني جامو کې
له سر تر نوکه په زېور په مرغلرو پټه
او د الماسو غاړګۍ دې سترګکونه وهل
داسې خو زه او ته سل ګونه ځلې
د دې خيالونو شيش محل ته تللې
او په پرديو خزانو کې مو خوبونه کړي
خو تا په ويښه يا په خوب کې کله
د بېلتانه خيالونه هم ليدلي؟
داسې يې وګڼه چې نور دا ستا په ژوند کې نه يم
او کړۍ ورځ دې لکه سيورۍ در سره نه يمه
نه دا بد رنګه دا بې خونده دا يوازې ورځې
دا اوږدې شپې د تنهايي کلونه څنګه ګالې؟
چا ته د شپې رنګين خوبونه وينې؟
څوک به دې وړي د ورځې سل نازونه؟
چا ته به سترګې توروې
چا ته به ځان جوړوې؟
څوک به دې بولي ملکه د حسن؟

د دې محله ښخه ليري د مياشتو په مزل
سل ګونه غرونه لوی سيندونه او رودونه تر منځ
زموږ د ابا زموږ د نيکونو پر ټاټوبي باندي
زموږ د غيرت زموږ د عصمت پر کهول
زموږ د کابل په اوږدو تورو شپو کي
د لېونيو قاتلانو د ګوليو باران
داسي زرګونه شيش محل او جنتونه وران کړل
او د ښايست ملکې
دا ستا په شاني ښايستې مېرمني
چېرته د حسن په بازار کي ګرځي
نازکو شونډو يې پټري نيولي
ځي په اغيارو کي نازونه پلوري
د شيش محل خوبونه نه سي ليدای
1995/3/1

## شينکی آسمانه

ما خو دا نه ويل شينکی آسمانه
چي به د اور دپاسه اور راځي
زما د غيرت شمله به کښته ګوري
زما هديرې ته به پېغور راځي

آسمانه ما خو داسي نه غوښتله
چي د ښارونو جنازي وژاړم
چي مي په کليو کي بلا لنګه سي
چي د ځوانيو هديري وژاړم

آسمانه ما خو داسي نه ويله
چي د کابل ګرېوان ته اور توی که
زما په جونګړه کي بلا وکړه
زما په لستوڼي کي ښامار لوی که

آسمانه ما ستا د ځوانۍ په طمع
دلته رنګين رنګين خوبونه ليدل
ما د ازله بېخبره کوچي
د ورك يوسفه تعبيرونه غوښتل

ما ويل زه به ستا ښايستي سينې ته
د خپله نظمه امېلونه جوړ کړم
ستا له نسيم سره به الوزمه
ستا پسرلي ته به شعرونه جوړ کړم

ما ويل زه به ستا د شپې په زړه کي
د سباوون ترانې وپاځوم
ما ويل زه به ټول نغمه نغمه سم

ستا د هستۍ شهباز به ونښوم
ما ویل زه به د سپېدو پر اوږو
ستا د زُهرې پلوشې وتخنوم

آسمانه اوس خو اهریمن د قهر
راغځولي دي خیرن لاسونه
یا مرور دی له تعبیره قسمت
یا بېګانه وه لېوني خیالونه
زما له زخمي کابله وینې څاڅي
کوڅو اخیستي دي ماشوم زخمونه
زما له انګړه جنازې درپاڅي
مه نیسه چیغو ته کاڼه غوږونه
آسمانه واخله ککرۍ درغلې
د ځوانیمرګو زړو تاوده رګونه

ما چې میوند میوند نارې وهلې
ما یې په غېږه کې ګلونه غوښتل
ما چې هلمند ته ترانې لیکلې
ما یې پر غاړه اتڼونه غوښتل
ما چې خیبر ته حماسې ویلې
ما یې لمن کې اولسونه غوښتل
ما چې پېچومي د پامیر ستایله
ما یې کمرونو کې لعلونه غوښتل

ما چي ټانکونه په سوکونو وهل
هغه مي خړ وطن سمسور غوښتی
ما چي سکروټي په غاښو چیچلې
ما مي سړو وینو ته اور غوښتی
ما چي ګولیو ته سینه سپرول
ما د ابا ساتلی کور غوښتی
ما د حیا پرده کي پټي غوښتې
چي مي پېغلوټي د کابل ستایلې
ما یې سرونه تر عزت جارول
چي بې عزتو را سرتوري کړلې

بس که آسمانه نور یې مه زنګوه
د اهریمن د اولادونو زانګو
په نوراني غېږ کي دي مه لویوه
دا تور بدرنګه دا زامن د تیارو

نور د منبر څوکو ته مه خېژوه
د ریاکارو زاهدانو ټولۍ
نور د عصمت کوڅو ته مه وروله
د نامحرمو دلالانو غدۍ
نور پر کمبله راته مه رغوه
دا د مرګي د چیغو ډکه شپېلۍ

چي په رڼګونو کي ساه وچلوي
دي سڼو وينو ته مي اور ورکه
چي د کڼو غوږونه وپاڅوي
آسمانه چيغو ته مي زور ورکه

ويرجينيا 1994 /3/9

## غزليات

يو ته نه يې پر هر چا مي شك پيدا سو
پر دنيا او مافيها مي شك پيدا سو
غل خو نه يې چي په نيمه شپه کي راغلې
د جانان خياله پر تا مي شك پيدا سو
کرۍ شپه شمع بلېږي پتڼ ګرځي
پر لمبه او پر بورا مي شك پيدا سو
هر کلنګ سو د فرهاد په نامه پورته
پر مجنون او پر ليلا مي شك پيدا سو
د جلاد پر باڼو اوښکه راښکاره سوه
پر ازل او انتها مي شك پيدا سو
د ابليس پر ګوتو سترګي تسپې اوړي
پر قسمت او پر قضا مي شك پيدا سو

شيخ په لو ږيره د حق ناري وهلې
د منصور پر مدعا مي شك پيدا سو
نن زاهد له جهاني سره ژړله
پر هر قول او رشتيا مي شك پيدا سو
ويرجينيا 11/21/1997



چي د حسن شور ماشور يې محشر وسو
په کاږه کاته يې کور د مجمر وسو
چي په ذکر يې خلوت بتکده کيږي
د هغه صنم په ياد مي ځګر وسو
چي د زلفو شپې يې خال په غېږ کي واخيست
د فلك په شبستان کي قمر وسو
تبسم يې د غوټيو خوله کړه پټه
د ښکلا هجوم يې کور د آذر وسو
نيم سېراب يې د لاله سينه داغي کړه
د فردوس په خُم کي جام د کوثر وسو
چي په تور يې جهاني دوږخ ته کش کړم
د هغې ميني په اور يې منبر وسو

کابل پښتو ټولنه 1354 لمريز کال



په وير کي د ببلتون چي په غوغا راسره نه سې
منصوره چي شريك مي په ليلا راسره نه سې
ما پرېږده چي مي اوښکي د تقدير پر لمن څاڅي
تر سترګو دي واری سم په ژړا راسره نه سې
جانانه زما جنون ته ازل هسي لېونی دی
ملګری په سفر کي د صحرا راسره نه سې
له سترګو يې بېرېږم هسي نه نظر مو نه کي
په مخ کي د رقيب چي په خندا راسره نه سې
جنونه که په غاړه کي ګرېوان درته په کار دی
زما شپې د لېونتوب دي چي تنها راسره نه سې
زخمونه پښتانه دي مالګي لپي لپي راوړه
قسمته مروره چي پخلا راسره نه سې
د سترګو اشارو ته د رقيب سترګي څلور دي
ما ستا په تهمت وژني ته رسوا راسره نه سې
نصيب رنځوري شپې د جهاني په نامه کښلي
طبيبه ته بدنامه په دوا راسره نه سې

94/15/1



پناه ته له ناکامه توپانو راوړی يم
ملګرو دې محل ته زلزلو راوړی يم
صياد مي پر زګېروي باندي مين سو توره بخته

قفس ته مي خوږمنو غلبلو راوړی یم
قسمت مي له وزر سره اورونه دي ګنډلي
یارانو دې انګار ته زولنو راوړی یم
یوه شېبه مي پرېږده زنګوم ستړي خوبونه
ساحله تر لمني دي څپو راوړی یم
کلونه لکه اوښکي د ګرېوان پر لوري ولاړل
مرګیه نن دي غېږي ته سلګو راوړی یم
زخمي اوښکي مي نه دي د ناسور له پرهارونو
دیدن ته دي حبیبه بهانو راوړی یم
دا لار مي د ښو په څوکو نه ده پیدا کړې
جانانه تر منزله دي سجدو راوړی یم
لا ولي مي په لاس کي پېماني په کاښو ولې
زاهده دې مقام ته خو توبو راوړی یم
سرابه جهاني دي په دام نه دی کښېوتلی
کوثر ته د نصیب هېرو وعدو راوړی یم



نصیب د تورو شپو مي د دې ښار لیدلی دی
دا رنګ مي په تندي کي د رویبار لیدلی دی
په کومه ژبه وستایم د تورو زلفو څوکي
د خیال په خزانو کي مي ښامار لیدلی دی
ملګرو د خوبونو تعبیرونه به مي څه وي

په صف کي د يارانو مي اغيار ليدلی دی
تر څو په پلوونو پټوې د رقيب سيوری
جانانه ما يې پل پر دغه لار ليدلی دی
لا زما له ستوني ولي د هوس تراني غواړې
شهباز مي ستا په کلي کي سنګسار ليدلی دی
له هوډه به وانه وړمه زاهده مروره
ما ستا په جنتونو کي انکار ليدلی دی
پر لاس د جهاني دي ولي ستړي کړه فالونه
پر پاڼه د ازل مي قسمت خوار ليدلی دی

واشنګټن ډي سي 9/29/1997



د ويښو شپو زړه کي لمبې تېرېږي
يا د يادونو قافلې تېرېږي
بوډۍ ځواني مي په نظر نه ورځي
ښکلي په وار جوپې جوپې تېرېږي
باده د خدای دپاره تم سه دلته
تر پلو لاندي پښتنې تېرېږي
ورو ورو د اوښکو په ګامونو راځه
ستا د خيالونو جنازې تېرېږي
مرګه ظالمه چي نظر مي نه کې
څو ښکلي شپې لکه شيبې تېرېږي

د افلاطون هنره ښتې ولې
د لېونيو زولنې تېرېږي
شيخه غوږونه دي کاڼه ګرځوه
د مطرب ګوتو کې نغمې تېرېږي
زاهده سر تر نوکه سترګې سولې
د ښکليو نجونو سلسلې تېرېږي
جهاني بيا کله توبې ماتوو
زلمي کلونه لکه شپې تېرېږي

واشنګټن 1997 د ډسامبر دېرشمه



ملګرو ځو به د خمونو لاري بندي سولې
پر تږو شونډو د جامونو لاري بندي سولې
فرهاده اوس به د شېريني مزل چېرته وهې
پر کلنګونو دي د غرونو لاري بندي سولې
پر خزانه د ښامارانو پيره ودرېده
راځئ په غلا د ديدنونو لاري بندي سولې
سوږميه اوس د افسانو تخمونه چيري لونې
چي د کيږدۍ د ماښامونو لاري بندي سولې
زلمي به نه شمېري لحظې د انتظار پر ګوتو
چي پر پېزوان د ګودرونو لاري بندي سولې
نور دي درخو په نقابونو کي ځواني تېروي

د آدم خان د ربابونو لاري بندي سولې
د سيتارونو له خالي کوګله ساندي اوري
د ترانو پر شهبازونو لاري بندي سولې
نسيم پرون د پسرلي جنازه وايستله
زموږ په وطن کي د ګلونو لاري بندي سولې
پتنګه بل چيرته سينه پر لمبه وسولوه
زموږ پر ماښام د پانوسونو لاري بندي سولې
سپرليه غېږه کي دي وساته ځولۍ ګلونه
پر دې بېديا د بهارونو لاري بندي سولې
له خزانونو توربېدلی بلبل نه راځي بيا
پر دې چمن د بهارونو لاري بندي سولې
جهاني ستا يې په تندي کي دي زخمونه کښلي
چي پر طبيب د مرهمونو لاري بندي سولې

واشنګټن ډي سي 8/31/1998



درد مي له سينې نه بهر چېرته ځي
ستا د تورو سترګو اثر چېرته ځي
زه په خپل اختيار درته راغلی يم
نور له دې زندانه خبر چېرته ځي
ميني ته ولاړ دي جلادان د وخت
ښکلي به پر لور د ګودر چېرته ځي

شیخه ریشتیا وایمه معذور یمه
ډله د شیطان کي کوثر چېرته ځي
خدایه دا سزا د کومي ورځي ده
شپو له پاسه شپې دي سهر چېرته ځي
زه خو یې ګرېوان مخي ته نه وینم
خدایه دا د اوښکو لښکر چېرته ځي
ژوند له حادثو سره پېیلی دی
دلته له ساحله خطر چېرته ځي
څو به جهاني له لاري وګرځي
ستا په نوم لیکلی سفر چېرته ځي

ویرجینیا 1/25/1998

## مسافر خوب

برایي مي خوب لیدی چي مخ پر ښار ځم
له پردۍ مېني پر لور د کندهار ځم
په تندي کي مي سجدې ورته ساتلي
په زیارت مي د مسجد د مور او پلار ځم
د زاغانو جنازې له باغه وزي

شين طوطي رنګه چمن ته په چيغار ځم
پروانه يم پر زخمي ګلونو ګرځم
په لېمو د رقيبانو لکه خار ځم
د ازل وعده مي وړي د نصيب کور ته
په اغزيو کي ور لغړم پر انګار ځم
د رنځورو کنډوالو اسوېلي اورم
طبيب نه يم تش کتو ته د پرهار ځم
له زرينو پنجرو مي وزر خلاص کړ
سوځېدلي ګلستان ته په اختيار ځم
لا نسکوري بنګلي په ساندو ژاړي
لا تپوس ته د زخمونو د بيمار ځم
له شهيدي ويني څاڅي له بګړيو
لا د مرګ د قافلو سره پر لار ځم
لا يتيمو ګرېوانو ته اوښکي ګوري
لا زلميو هديرو ته په کوکار ځم
لا زګېروی دی د قبرونو د جنډيو
لا د اوښکو د جرګو سره رويبار ځم
نن له مځکي او آسمانه ګيله من يم
چي د مستو ځوانيمرګو تر مزار ځم
نور تر مرګه مرور يمه آسمانه
چي له جوره دي پاتا ته د دلدار ځم
جهاني لېونی مه بولئ يارانو
چي د يار کوڅې ته ځمه نو هوښيار ځم

1996/16/4

## معصومې

چېرته د مني مازيګر د سمندر پر غاړه
يوازي زه او ته واى
او ننداره مو د موجونو کړلاى
لمر د رخصت په وخت کي
د سمندر پر لمن تخم د طلا شيندلاى
او څو شېبې وروسته د شپې اژدها
د سمندر له غېږي وړلاى طلايي خمونه
وړو او لويو څپو
د ساحل غېږي ته په منډو منډو
را رسولاى د درياب له توپاني کوګله
د هېبتناکه تلاطم خبري
او دلته د يوې ګاري تر څنګ
له خپله ځانه بې خبره غوندي
وربېښميني څو&

# ملك بلو خان

دې کيسې ته مې غوږ نيسئ هوښيارانو
له ځوانۍ مې اورېدلې له پوهانو
چې بدرۍ د بلو لور وه په کلونو
مسافره له وطنه له دښتونو
نه خپلوان نه يې همزولي وه ليدلي
نه سندري يې د نجونو اورېدلي
نه يې ورونه نه يې خويندي ورغلي
نه په ټول کي د خپلوانو يې خندلي
نه خبره په واده د بسوګۍ وه
نه کيسه چا ورته کړې د ابۍ وه
ماشومان چې دې د کلي وه ليدلي
زلمي سوي وه چنار غوندي ختلي
يوه ورځ بلو روانه کړله کور ته
خپل ټاټوبي د ابا، غېږي د مور ته
بدرۍ وکړه له بلو څخه پوښتنه
ابا نه يمه خبره له وطنه
نه خبره له احواله يم د نجونو
نه کيسې دي چا راوړي د ودونو
نه خبره يم د چا له رنځورانو
نه احوال راته معلوم د ماشومانو

سلامت مي ټوله غوښتي دي له خدايه
په وطن کي چي څه پېښ دي راته وايه
بلو دواړه برېته تاو کړل ويل لوري
ته اوس لور د بلوخان يې بختوري
ستا بابا دی اوس ملك د غره د سمي
چاته مه کوه خبري کمي کمي
که څوك مري او که زندان ته روانيږي
زما په خوله ټولي دعوې فيصله کيږي
په وړه خبره سوځمه کورونه
او چي زړه مي سي بخښم لوی ګناهونه
لاس تړلي خلك بيايمه سرکار ته
اشاره مي خېژوي وګړي دار ته
هم سيد يمه هم خان يم هم هوښيار يم
ته وا ټول مي غلامان زه يې بادار يم
پرون خلك شرمېدل زما په پوښتنو
نن روپۍ دي را رواني په لمنو
بدرۍ شنه د ژړا ولاړه ويل پلاره
هديرې ته مي پر څه بيايې له ښاره
ما وې زه به مي ديدن کوم د کلي
مچوم به مي خپلوان او نازولي
خپل کاله ته به ورځم پس له کلونو
ننداري ته به ورځم د ګودرونو

پر بام بوتو به مستي کوي پېغلاني
تر سالو لاندي به پټي وي ناويا&

## مور ته

ستا له قسمت سره د میني پټ ځنځیر تړلی
موري له تا سره د ویښو شپو تصویر تړلی
ستا له انځور سره ملګري دي رنځور کلونه
ستا د ژوندون له هري شپې سره شوګیر تړلی
هسي دي نه کړل جنتونه تر پښو لاندي خالق
ستا له رضا سره د هر بنده تقدیر تړلی

راته یادیږي دي رنځوري خوبولي سترګي
شپه تر سهاره دي په جار او په قربان غوښتمه
راته یادیږي نیمي شپې د الاهو سندري
چي زمزمه به دي کوله زه دي ځوان غوښتمه
تا په سیالانو په همزولو کي سرلوړی غوښتم
تا له خالقه لکه ستوری پر آسمان غوښتمه
چي دي زانګو کي زما تندی او زما فالونه کتل
پر هر میدان دي بریالی او قهرمان غوښتمه
تا مي په لاس کي د احمد او محمود توره لیده

یو ځل دي بیا پر پاني پت او اصفهان غوښتمه
تا مي د پېغلو په سندرو کي کیسې غوښتلې
مګر له توري د ظالم دي په امان غوښتمه
زما له سایې دي د مرمیو سیوری لیري غوښتی
ژوندی دي غوښتم د پلو دي نګهبان غوښتمه
موري پو هېږم چي پر سره کفن دي نه وم پېرزو
مګر ټولۍ کي د غازیانو دي روان غوښتمه

تا وې چي زما د زوی د توري له هیبته څخه
د خلکو زړونه په لړزه سي له کټونو پرېوزي
تا وې چي زوی مي لکه باز پر لوړو څوکو ګرځي
چي له حملو یې کرګسان له ګړنګونو پرېوزي
سي یې له ډاره د غلیم په زړه کي ویني وچي
له خرخښو یې د چا توري له لاسونو پرېوزي

زه نه د جنګ نه د میدان سوم نه د تورو سومه
لکه شاعر هدیرې ژاړم جنازې ژاړمه
په خوب او خیال کي مي کوثر کوثر وطن ګورمه
پردېسو ګوتو کي سپېرې تشي پیالې ژاړمه
د عزیزانو کډي ووتې له ښاره څخه
د بې وطنو توري ورځي سړې شپې ژاړمه
په ورکو لارو تورو شپو کي بې منزله کډي
دا بې جرسه بې سالاره قافلې ژاړمه

دلته په غېږ کې د ساحل د سودايي په رسم
په توپانونو کې ببړۍ وينم څپې ژاړمه
د خيال پر کور مې د مرميو بارانونه اوري
موري کابل مې اور اخيستی دی لمبې ژاړمه

موري د تورو ميدانونو ته ورتللای نه سم
د فرشتو په شاني ميندې ژړولای نه سم
زه د بازانو له ځالې څخه راغلی نه يم
مرګ د کوترو په سپلونو ګډولای نه سم
ما ستا په غېږه کې يوازې مينه وځکله
اوس مې په وينو کې غضب راويښولای نه سم
تا راته زر ځله کيسې د عرش د خدای کړې دي
ياغي تندی مې بل څښتن ته لګولای نه سم
تا مې په وينه کې د مينې ډېوې بلې کړلې
د چا د شپو بلې ډېوې خاموشولای نه سم
تر څو مې ستا د الاهو زمزمه غوږ کې ګرځي
د چا په شونډو د للو نغمه وژلای نه سم
زه دې د شنو جلګو شپېليو لره و روزلم
ملامت نه يم که نن اور ته ګډېدلای نه سم

که د غ

# نابللی رويبار

څوك يې چي بيا مي ناكرار زړګي ته
د كلو هېر زاړه يادونه راوړې
بيا مي سينې ته د اغزيو اندی
بيا مي لېمو ته شوګيرونه راوړې
بيا دي سوهان كړل د پرهار زخمونه
په زخمي زړه كي مي ناسور ويښوې

له كومه راغلې دا د چا پته ده
زه نور له چا سره رويبار نه لرم
زه او جانان مي سره نه پېژنو
زه له قاصده سره كار نه لرم
ما خپل وزر پخپله وسوځاوه
نور له ګلونو سره خار نه لرم
د خدای دپاره ما يوازي پرېږده
د چا راتلو ته انتظار نه لرم
پرون چي هر څه وه دروغ يې ګڼه
مينه پردیَ سوله اغيار نه لرم

ما چي په وينو كي بخري ژړل
اوس مي له خپلو وينو اور واخيست

ما چي سکروټي په بڼو ځيرلې
له لېونتوب څخه مي شور واخيست
چي په لحد کي مي مستي ويښول
له هغو چيغو نه مي زور واخيست
زه د سراب له منډو ستړی يمه
نور مي د سيند پر غاړه کور واخيست

ما له صياد سره خپلوي وکړل
ما ته منظور دي د قفس خوبونه
ما له وزر سره دوستي وشلول
نور راته مه ښيه ياغي خيالونه

پر هغه لاره چي راغلی يې ځه
زوړ يارانو ته سلام يوسه
دا ځو رنځوري شپې مي پرېږده راته
ورکي جونګړي ته پيغام يوسه

چي دا بې واکه دا نري لاسونه
د وخت ځپو ته ټينګېدلای نه سي
دا له ميدانه تښتېدلی سپاهي
د غشو سېل ته سپر کېدلای نه سي

ویرجینیا 4/17/1996

## ویاړ

ځومره شېريني دي د جنګ د ميدانونو کيسې
ځومره آسان دي د شاباس او آفرين ږغونه
ځومره خوږې دي د مېړونو د مردۍ خبري
د اتلانو د سرونو د بازار نکلونه
څه پر غوږونو ښې لګيږي پخوانۍ سندري
د مستو پېغلو په اتڼ کي د زمرو نومونه
په څه غرور د شهيدانو تر مزاره ورځي
د ښايستو نجونو ټولۍ ګېډۍ ګېډۍ ګلونه

خو چا پوښتنه له شهيده د زخمونو کړې؟
چا له اتل سره خواله د پرهارونو کړې؟
چا يې د مرګ پر پوله سترګو ته يو ځل کتلي؟
چا يې په سترګو کي کيسه د ارمانو ليدلې؟
چا د شهيد د بوري مور سوی کوګل کتلی؟
چا د ښايستې سرتوري کونډي وران اوربل کتلی؟
چا په سينه کي د مرګي د ګولۍ زور ليدلی؟

چا د زړګونو ارمانو سوځلی کور کتلی؟

چي زولنو او ځنځيرونو ته نظمونه ليکي
هغه شاعر د سياه چالونو سرې شپې ليدلي؟
د لړمانو په کاله کي يې خوبونه کړي؟
وچو هډو يې د نېښونو سلسلې څکلي؟

د هوښيارانو دا يوه خبر مي نه هېرېږي
"مځکه هغه سوځي چي اور وربانديي ولګېږي"

ويرجينيا 12/27/1998